# ضحاک

## د غوريا خيل تواريخ

پروفیسر خواجه محمد سائل

بهادر کلے پیښور

د کتاب نوم ـــــ ضحاک (د غوریا خېل تواریخ)
ترتیب و تدوین ـــــ پروفېسر خواجه محمد سائل
کمپوزر ـــــ ارشاد خان (پښتو اکېډیمي)
مخپاڼه ـــــ وقاص احمد
شمېر ـــــ ۵۰۰
اشاعت ـــــ ۲۰۲۰ء
د چاپ ځاے ـــــ اعراف پرنټرز محله جنګي پېښور
بیعه ـــــ ۳۰۰ روپۍ

یونیورسټي بک اېجنسي خېبر بازار پېښور
پښتو اکېډیمي کتاب پلورنځے پېښور پوهنتون
ثاقب پبلشرز رحمت مارکیټ قصه خوانی پېښور
کتاب کور، انعام پلازه یونیورسټي روډ پېښور
فرېنډز بک سنټر پي ار سي مارکیټ مردان
تکتو کتاب کور کاسي روډ کوئټه
اباسین کتاب پلورنځے کراچۍ
حماد بک سنټر میر افضل خان مارکیټ بټخېله
سلیم بُک سنټر یونیورسټي آف ملاکنډ چکدره
شعیب سنز مینګوره سوات
مومند خپرندویه ټولنه جلال اباد
سمون خپرندویه ټولنه کابل



# تړون

د غوري ميزائل مؤجد
او مشهور سائنسدان

**ډاکټرعبدالقدير خان**

په نوم

# فهرست



لیکونکے د یو نیم کال په عمر 23 دسمبر 1939ء ژوب ملیشیا هیډ کوارټر بلوچستان



خواجه محمد خان 1950ء شپږم جماعت :۔ دولس کلن

# څو خپلې خبرې

زما دا کوشش د منهاج سراج جوزجاني د تواريخي کتاب "طبقات ناصري" نچوړ دے .هغۀ دغه کتاب ۱۲۲۰ء کښې د غياث الدين بلبن په زمانه د غور او خواؤ شا علاقو معلومات سرته اورسول او د بادشاه په حضور کښې ئې پېش کړل .ددې کتاب اصلي محرک فخر الدني مبارک شاه وۀ .چې ضحاک نه واخله تر علاؤ الدين جهان سوز دپاره ئې مرتب کول غوښتل .خو وروستو ئې مزاج کښې تغير واقع شو او کتاب ئې نيمګړے پرېښودو .د هغۀ دغه ليکنه منظوم وه .دمنهاج سراج مطابق د هغۀ عمر دغه زمانه ديارلس کاله وۀ او د شاهي دربار محل کښې ئې د غوري د شنسباني خانداني شجره نسب په خپلو سترګو ليدلې وه .هغه وائي چې زما د معلومات د ذخيرې اساس زيات تر دغه شجره نسب وۀ چې د شنسب نه تر ضحاک پوره تفصيل کښې درج وه او ما د خپلې حافظې په طاقت دغه شجره پُشت په پُشت ياده وساتله .د منهاج سراج دغه دليل سره زمونږ اتفاق په دې بنا نشته چې هغۀ کوم نومونه ورکړي دي .د ضحاک نه تر شنسب کافي نۀ دي او د زمانې په لحاظ اوږو کښې د مالګې برابر هم نۀ دي.

"مولانا فخر الدین نے ان شنسبانی سلطانوں کا ذکر حکمرانی کے آغاز سے ضحاک تک پُشت بہ پُشت کیا ہے۔"      (طبقات ناصری ص ۵۸۰)

د طبقاتِ ناصري د ليکونکي نيکهٔ او جدِّ امجد مولانا
عبدالخالق ۱۰۵۹ء تا ۱۰۹۹ء د بلخ او مرو تر مېنځ د جوزجان نه
غزنه پلو منتقل شو. او دلته ئې مستقل سکونت اختيار کړو. ددهٔ
دوفات نه پس مولانا ابراهيم وهٔ چې د منهاج سراج پلار وهٔ. منهاج
سراج ۱۱۷۱ء کښې د حج فريضه ادا کړه او چې ۱۱۷۳ء کښې
غزني د غوريانو ماتحت شو نو هغه د غوريانو مرستيال شو او د
غوريانو دربار ته ئې رسائي حاصل کړه او د هغوي خېرخوا شو.
۱۱۸۲ء کښې د لاهور د فتح دوران غوري بادشاه سره موجود وهٔ. د
لاهور د فتح نه وروستو فېروز کوه ته راغلو. د شمس الدين محمد
سام په دعوت باميان ته لاړو. ۱۱۹۳ء کښې شمس الدين محمد
سام وفات شو او د هغهٔ زوے بهاؤ الدين سام د باميان او
طخارستان بادشاه شو. بهاؤ الدين سام دغه مولانا منهاج سراج
باميان ته راوغوښتو. باميان ته د دعوت په موقعه بهاؤ الدين سام
ورته د فېروزي جوړه يوه قيمتي ګوته چې ''سام'' نوم پکښې کنده
وهٔ وروليږله. منهاج سراج ۱۱۹۶ء کښې باميان ته راورسېدو او
بادشاه په لوے اعزازات او مراعات سرفراز کړو ۱۲۱۵ء کښې د
غوريانو اقتدار د علاؤ الدين محمد خوارزم شاه د لاسه ختم شو
ځکه چې د غوريانو نوي کُول کښې جنګجويانه صلاحيت او خپلو
کښې تربګنۍ د تنزل ښکار کړي وو. خو د خوارزم شاه تکبرانه
ژوند د هغهٔ حکومت د زوال باعث شو او د تاتاريانو يو ناساپي
۱۲۲۸ء کښې د حملو شړق او تندر د خوارزم شاه د تباهۍ باعث

شو. تاتاریانو ترکستان ، خراسان ، ایران ، عراق خوفناک بربادي او خون رېزي سره مخامخ کړل.

۱۲۱۲ء کښې منهاج سراج د بُست (عمر ۲۴ کاله) ۱۲۲۰ء کښې تولک ، ۱۲۲۱ء کښې د غور مشرق علاقه ګزیو تمران ۱۲۲۴کښې د اسفزار پـه لار قـائن ۱۲۲۵ء د غـور قلعه خېسار. شمالي وزیرستان کښې د خېسوره په نوم یوه علاقه حاکم ملک رکن الدین محمد عثمان مرغني[1] سره وو . ۱۲۲۳ء کښې هند ته لاړو. د ګوالیار د فتح په موقع موجود وۀ . ۱۲۴۲ء کښې دهلي نه بدایون ۱۲۵۰ء کښې ملتان کښې وۀ. د غیاث الدین بلبن په زمانه ډېر اسوده حال وۀ . ۱۲۶۰ء کښې ئې د طبقات ناصري کتاب اختتام ته ورسوۀ.

طبقات ناصري د خراسان غور و غزنه او هندوستان متعلق کافي معلومات لري .خو د مؤرخ غټه کمزوري دا ده چې ځینې واقعات ته افسانوي رنګ ورکوي. د پخوانو شاهانو د ذکر جائزه د نور مؤرخین برعکس کمزورې ښکاري .د زړو مورخینو جائزې نسبتاً مستند او صحیح دي.

د طبقات ناصري برکت وۀ چې د غور د سام و سُور نسل په ذریعه پټه خزانه د پښتو ادبي دنیا کښې متعارف شوه. او د "امیر کروړ یاد" افغانستان کښې یو لوے سیمینار منعقد شو. خو د افسوس مقام دے چې د سام و سور نسل غور کښې زیات شو. نو ددغه ځاے وسېدونکي یعني د غور او ایغوریه خلق د معاش او د

[1] د مرغه - مېدان په مناسبت.

ځاروو د ګیاه سرسبز علاقو ته هجرت یقیني شو ۔ د سکندر اعظم ۳۲۰ ق م قبل د ګوري غوري یوه لویه ډله د دیر د پنجکوړه ګورائیوس یو بله غاړه اباد شول او د ایغوریه خلقو د کاس (سنسکرت) کاش غر په سیمه د سنکیانک چین جغرافیائي حدود کښې اباد شول چې تر اوسه هلته سکونت لري ۔ ولې په دې موضوع په دغه کتاب کښې هېڅ مواد موجود نشته ۔ په معنٰی د روڼ ، روښانه ، منور د ۵۰۰ء خواؤ شا زمانه وه چې وسطِ ایشیاء نه یو وحشي قوم د خپل مشر تورمنه په قیادت کښې د ګندهارا سیمه تاخت و تاراج کړه ۔ د کُشان خاندان د بُدھ مت ټول اثار ئې تباه کړل ۔ زبردست خون رېزي ئې اغاز کړه ۔ دغه وجه وه چې خلق د ګندهارا نه په هجرت مجبور شول ۔ د ګندهارا حکمران مهرکله شو ۔ چې یو ظالم انسان وۀ ۔ د هُن بربریت یو قهرِ خداوندي وۀ ۔ ګورې اسپې مجبور شول چې د ګندهارا نه ګوري غور غز نه او بامیان ته او یوسفزي بالشتان والشتان یا الشت ته هجرت وکړي ۔ چې د دواړو لویو قبیلو پلار ګنے مسکن وۀ ۔ د یوسفزو د هجرت په سبب د الشت نوم د ګندهارا په مناسبت قندهار شو چې تر اوسه قائم دے ۔

تفصیل دپاره وګورئ زما کتاب ګورې اسپې مخ ۱۲۳

دا غوریان / ګوریان ډېر کسان د غرونو په تنګو درو کښې هم پټ شول چې د هُن آفت نه وروستو بهر راووتل ۔ څوک هم دغه غرونو کښې اباد شول او څوک د پېښور مېداني سیمو ته راکوز شول او بیا وروستو د جے پال ، انند پال ماتحت رعایا شول او سیف الدین اغراق غالباً هم د دغه نسل اخلاف وۀ چې وروستو

مسلمانان شوي وو ـ معلومېږي چې د جے پال په زمانه د مذهب قدغن نۀ وۀ ـ

د بهلول لودي په زمانه پښتون قوم ته په هند کښې د ابادۍ دعوت او دغلته د سرخېزه زمکو اعزازات ورکول یو داسې ښکلے پېغام و چې هره قبیله د خُشک ، ویجاړ او د غرونو د لمنو نه د هجرت په ارمان را روان شول ـ وړوکې قبیلې لکه خوېشکي ، لوهاني وغېره تېزۍ سره خپل مرام ته ورسېدل ولې لوئې قبیلې لکه غوریا خېل یا یوسفزي د بهلول لودي په ۱۴۸۹ء کښې وفات په سبب ډیل شول ـ او د پېښور په سیمه اباد دلزاک ئې وشړل او غوري خېل یوسفزي اباد شول[1] ـ

د غوري قبائل متعلق د علي بن محمد البُستي ''تاریخ سوري'' د شېخ اسعد سوري ''تاریخ سوري'' دا دواړه تواریخي کتابونه د ملک محمد سوري دپاره د شنسب نه تر ضحاک مفصل شجره النساب تیار شول او وروستو د علاؤ الدین جهان سوز ، شهاب الدین محمد غوري دپاره فخر الدین مبارک شاه د نظم په ژبه شجره نسب ترتیب کړه او ددغه په رڼا کښې منهاج سراج طبقات ناصري ولیکلو ـ ددغه شجرو او شاهانو ذکر د غور ، غوریانو مفصل حالات بیان شول خو نور پښتانۀ قبائل د خپل شجرات نه محروم پاتې شول ـ کۀ یو اړخ غوریانو پخپل شناخت او پهچان فخر کوۀ او د حضرت علي رض په لاس د شنسب بیعت کول عام خبر وه نو نور قبائل هم د خپل شناخت د ذرائع لټون شروع کړو

[1] غوري خېل مومند د حملې او جنګ و جدل او یوسف زي د خواست په ذریعه اباد شول

او دغه مقصد خان جهان لودهي د جهانګير بادشاه په زمانه کښې د نعمت الله هروي په غاړه کړو او د کسي (قيس) غر او سلېمان کوه (د افغنه تصور) په بنياد ئې د حضرت محمد ص په زمانه ۶۲۹ء/ ۸ هـ کښې د قېس عبدالرشيد د اسلام قبوليت چې د شنسبيانو د حضرت علي رض د بيعت نه اګاهو ترتيب شو ۔ پښتنو دپاره د ''ملک'' فخريه اعزاز چې اسلام نه هم وړاندې مستعمل وو۔ د دواړو برخو دپاره معزز شو او بطان د پټهان نمابنده شو . او دغسې عبراني قېس نوم د ټولو پښتنو قبيلو او ګوندونو د وحدت مرکز او يو نيکۀ شو۔

د واقعات خلاصه

| قېس عبدالرشيد | بمقابله | امير شنسب |
|---|---|---|
| ۸هـ | // | ۳۰هـ |
| کسي او سلېمان کوه | // | غور / ګور |
| نعمت الله هروي | // | ابوالفتح علي بن محمد البستي |
| او | | او |
| شېخ متي | // | شېخ اسعد سوري |
| مخزن افغاني ، پټه خزانه | // | تاريخ سوري |
| ۱۰۲۰هـ | // | ۴۰۱هـ |
| زمانه محمود غزنوي | // | اميرمحمد بن سوري |
| غزنه | // | غور |

د ضحاک پښتو نيت او د سام و سُور د اولاد شجره نسب

چې د سوري او سام نسل بادشاهانو ته راورسي نو هغوي ډېر په

فخريه انداز سام و سُور نومونه د خپل نوم جز و لاينفک وګڼي چې طبقات ناصري کښې واضحه موجود دي.

ملک قطب الدين حسېن ، ملک عزيز الدين حسېن ، ملک الجبال قطب الدين ، ملک شهاب الدين ، ملک الامير عباس بن شيث ، ملک محمد سوري وغيره د ''ملک'' نه پس د امير القاب ، سيف الدين سوري نه د سلطان او تاتاري نه وروستو د خان په نوم سرفراز شول. چې د هندوستان سلاطين دهلي هم په دغه اعزاز سرفراز شول . د ګوډ تيمور نه وروستو شاه رُخ مرزا ۱۴۰۲ تا ۱۴۴۷ بادشاه وو۔او ۱۴۲۱ کښې د دهلي بادشاه مبارک شاه وو. دغسې د شاه اعزازي نوم متعارف شو. عن چې د سُوري نسل شېر خان او د هغهٔ اخلاف هم خپل نومونو سره باقاعده د شاه اعزازي نوم شامل کړو. ولې د پښتنو نور ذيلي شاخونه ددې قسم القاب نه تقريباً محروم پاتي راغلل. که څهٔ هم عبدالرشيد د ملک په فخريه لقب معزز وهٔ چې د طالوت نه وروستو هر پښتون ته دغه عزت حاصل وهٔ.

د باره مومند متعلق عبدالقادر خان خټک پخپله يو تاريخي جنګي قصيده کښې مومند داسې ستائي:

نن نسيم د پېښور له لوري راغے
څو وېنا ئې راته کړې زباني دي
چې نن شپه مومندو وهلې توري
چې وهلې نهٔ افغان نهٔ توراني دي

د بـاړې اويـۀ ئـې سـرې لکـه شـراب کـړې
د سـربند[1] کـاڼي همـه ارغـواني دي
همېشـه پښـتون مومنـدو د ے درونـد کـړے
کـۀ سـبب ئـې د خِفـت ميـرِ افغـاني دي
دا متـل د ے تېـغ پـه اصـل غوڅـول کـا
د مومنـدو تـورې اوس نـۀ دي کـاني دي
افريـدي شـينواري جنـګ پـه غرونـو کانـدي
غوريا خېل پـه مېـدان جنـګ کـا مېـداني دي

زۀ حيران يم چې مستشرقين غېر پښتون مؤرخين يا خپل درنو او قابل مؤرخينو مونږ د اريا النسل او سامي النسل پـه لانجـه کښې ولې ګېر وساتلو - پښتنتانۀ ئې ولې کله يو او کله بل نسل څخه مربوط کړۀ - د پښتنو د قبيلو تواريخي پس منظر بالکل صفا او شجره نسب ئې ظاهر وۀ -

ما پخپل کتاب ''ګورې اسپې'' کښې د طبقاتِ ناصري نه د ګوروالشت په موضوع يو ورکوټے شان بحث هم کړے وۀ - زۀ اوس هم ددې قائل يم چې د غوري خېل او يوسفزو تواريخي واقعات شفاف او ظاهر دي - د دوي ارتباط لکه چې غور او ساکا يا شخے څخه ښکاره د ے او د پښتو نازک خيال شاعر عبدالحميد بابا ئې داسې په ډاګه ښائي :

[1] سربند د خليل په علاقه يو داسې کلے د ے چرته نه چې آبي نالـه جات د خليل قوم د زمکو ابياري جاري ده - د باړه په سر دغه بند تعمير لري - نو په دې وجه ورته سربند وائي . د قېس عبدالرشيد د زو ے سړه بن سره ئې هېڅ مناسبت نشته -

چې دا ستا د نافې[1] بوئي اخلي حميده
څۀ به نۀ وي خوش دماغ غوره خشے

فراه ، ارغسان ، زرنج ، کابل ، غزني ، هلمند ، هرات ، فارياب، زابل ، مېمنه ، بسُت ، زميندا‌ور وغېره کښې د پښتنو کوم ذېلي شاخونه اباد وو ـ تحقيق غواړي ـ

هندکيان وائي ګندهارا د ګلونو ښار ته وائي ـ دوي د عقل پيادۀ ته دا پته نشته چې زما په وړوکوالي د پېښور ګېرچاپېره د شفتالانو ، ناکو او بتهنګانو باغونه وو ـ او د مارچ په مياشت کښې په دغه باغونو کښې د سپينو او ګلابي رنګ Pink ګلونو خوشبو د پېښور فضا مخموره ساتله ـ ګندهارا حقيقتاً د سوات و دير علاقه ده چرته چې يوسفزي او غوري قبائل اوسېدل ـ البته پېښور د ګندهارا علاقې يوه برخه ضرور وه چې هغه زمانه ئې ورته پوروش پوره وئيل ـ او ګورکهتړۍ مندر پورې محدود ځاے وو ـ وائي چې د هندومت مطابق پوروش اولنے انسان وۀ چې ايشور دې جهان کښې پېدا کړو ـ هغۀ چې د خپل بدن قرباني ديوتا ته ورکړه نو د هغۀ اعضاء نه نمر ، سپوږمۍ ، زمکه اسمان ، ستوري او مشرق و مغرب وزېږېدل[2] ـ

د قديم تواريخي کتابونو لوستو نقص دا دے چې چرته په نومونو او سنونو کښې غلطۍ وي يا واقعات د يو بل متضاد وي ـ ځينې واقعات افسانوي رنګ لري او داسې نور کمے او غلط اندارج لوستونکے مذبذب او کنفيوز کوي ـ

---

[1] نافه بمعنٰی د مشک يعني شاعري

[2] Man's Religions

طبقات ناصري کۀ هر څو په دې لحاظ يو ښۀ کتاب دے
چې مونږ د غوري خېل متعلق ډېر معلومات سره اشنا کوي نو بل
خوا د واقعات مخکښې وروستو او سنونو بې ترتيب اندراج زمونږ
تشکيک او تېروتنه کوي۔

مشرقي مؤرخين د ضحاک پحقله وائي چې دۀ سره د سرو
زرو يوه شپېلۍ وه چې په هغې کښې اووۀ سوري وو ۔ او په هر
سوري کښې د بئل بئل اقليم نوم ليکلے شوے وۀ چې کوم اقليم يا
ملک به بغاوت وکړو نو دۀ به په هغه سوري جادو پوک وهلو او په
دغه خلقو به افت نازل شو۔

مغربي مؤرخين هم و ضحاک د پښتنو بادشاه نۀ گڼي او
وائي چې دا د شاعرانو فضول قيصې دي ۔ مشرقي مؤرخين وائي
چې ضحاک باندې فريدون غالب شو نو ددۀ د خاندان افراد د يو
داسې ځاے په لټون شول او اخېر کار د ضحاک دوه نمسي سُور او
سام د غور علاقه منتخب کړه ۔ سُور بادشاه او سام سپه سالار شو۔
د سور لور د سام زوے شجاع (په معنٰی د بهادر) باندې وادۀ شوه
چې سام مړ شو ۔ د هغۀ زوے سپه سالار شو ۔ او خپل ترۀ سُور سره
وسېدو ۔ خو شيطانانو د ترۀ او ورارۀ تر مېنځ بدگمانی پيدا کړې۔ د
سُور مطلب دا وۀ چې شجاع بن سام زما لور پرېږدي ۔ اخېر دواړه د
خپل وطن غور نه شپه په شپه را روان شول او مند ېش کښې ئې پناه
واخسته ۔ د دوي په خاندان کښې حکومت را روان وۀ عن چې
شنسب ته راورسېدو نو د حضرت علي رض په لاس مسلمان شو۔

زما په خیال د امیر بنجي بن نهاران بن امیر پولاد بن خرنگ بن غریق بن اغراق بن شنسب وو ۔ څوک چې د غوریانو اولنے مسلمان حاکم وۀ ۔ ( شجره کښې ما د غریق اغراق اضافه وکړه )

''غور د هغه کوهستاني علاقې نوم دے چې یو اړخ د هرات او کابل او بل طرف د قندهار او بلخ تر مېنځ پرته علاقه ده ۔ هم دغه غرونه د پښتنو اصلي وطن ګڼلے شي ۔ دغه وجه ده چې د غور پښتنو چرې هم د بهرني حمله آور حکومت تسلیم کړے نۀ دے[1] ۔''

زمونږ د تواریخ لویه بدقسمتي دا ده چې ټپه و چاربېته ، نیمکۍ او د ځینې شاعرانو په شاعرۍ مو د خپل خیالاتو په اظهار کافي ګڼ ریسرچ سکالرانو ډېر په اسانه د ډاکټرۍ اسناد واخستل خو د تواریخي واقعات د لیک نه ډډه کوي ۔ حالانکې د ځان په معرفت کښې معرفت دے د سبحان ۔ پښتو اکېډیمۍ او پښتو ډیپارټمنټ (شعبه) له پکار دي چې تواریخي اصنافو باندې کار وکړي ۔ د پښتنو د علم دا کمزوري هم ښکاره دۀ چې د افغانستان لیکوال په فارسۍ او پښتو عبور لري ولې د انګرېزي او اردو ژبو د پوهنې کمے لري ۔ دغسې په کوزه پښتونخوا کښې که هر څو د پښتو، انګرېزۍ او اردو باندې عبور لري خو فارسي ، عربي یا نور متعلقه ژبو علمیت ئې نۀ وي ۔ ۱۹۸۳ ء کښې د هندوستان د ذکریا یونیورستۍ یو لائبرېرۍ ته وردننه شوم ۔ په هندۍ کښې ډېر

[1] د پښتنو تاریخ جلد اول ، از قاضي عطاء الله

کتابونه د المارو زینت وۀ خو انګرېزۍ ، اردو یا فارسۍ کتاب په کښې موجود نۀ وۀ .د لائبرېرین نه په پوښتنه هغۀ ماته هم د دغه لائبرېرۍ د ننه د لرګو نه جوړ یو چت طرف ته اشاره وکړه .زۀ حېران شوم چې پدغه لائبرېرۍ کښې په زرګونو کتابونه په اردو . فارسۍ او انګرېزۍ ژبو لیکلي موجود وو چې د اکثر کتابونو تعلق د پښتنو سره وۀ .د پاکستان د شهریت په اساس مونږ ته دغه لائبرېرو ته رسېدل ګران او ناممکن دي .خو بل خوا د افغانستان وسېدونکو ته که هر څۀ دغه مراعات حاصل دي ولې هغوي په انګرېزۍ او اردو نۀ پوهېږي .د اصلي ریسرچ فقدان دے او د فارسۍ ژبې د دباؤ په وجه د کمترۍ احساس لري.

زمونږ غټه بدقسمتي دا هم ده چې مونږ تر کومه د پښتو په سبب نوکران یُو .د خپل درناوخت دپاره د پښتو په مختلف اصنافو لیکل کوو چې په نوکرۍ کښې زمونږ د اهمیت سبب وګرځي خو چې کله ملازمت نه فارغ شو .نو بیخي لیکل پرېږدو .نۀ پوهېږم چې دا ولې ؟

زۀ چې اوس دا کتاب لیکم نو زما عمر ۸۳ کاله دے .نظر کمزور دے په غوږونو کوڼ یم .د نورو ډېرو بیمارو اماجګاه یم .خو د پښتو ژبې خدمت لازمي ګڼم .انشاء الله تعالیٰ حوصله مې مضبوطه ده الله تعالیٰ به مې ضرور د دې کتاب په خاتمه او چاپ کښې کامیابوي.

خواجه محمد سائل

بهادر کلے پښنور

# ماقبل الاسلام
## مختصر حالات

د اسلامي حکومت قیام نه اګاهو د حضرت سلیمان[۴] په زمانه د ایران شهنشاه منوچهر وۀ چې د سیستان ، خراسان او عراق حکمران وۀ ـ ضحاک شاه غور پینځه سوه کاله دۀ نه اګاهو وۀ ـ منوچهر د افریدون نمسے وۀ ـ د منوچهر بالمقابل افراسیاب د بلخ حکمران وۀ چې څو وارې ئې منوچهر ته شکست ورکړۀ ـ اخرکار د رُستم نیکۀ سام نریمان د منوچهر په طرف شو ـ افراسیاب شکست وخوړو او قتل شو ـ د منوچهر شپږ شل کاله حکومت وۀ ـ رُستم د منوچهر او سهراب د افراسیاب په طرف وو ـ د هغه وخت مطابق د رُستم او سهراب یعني پلار او زوے تر مینځ د کُشتۍ اهتمام وشو ـ د پلار زوے رشتې نه بې خبر سهراب د خپل پلار رستم د لاسه هلاک شو ـ څۀ زمانه وروستو د بابل بادشاه د اسفندیار زوے بهمن د پلار بدل واخستو ـ د اسفندیار نه اګاهو د بلخ حکمران ګشتااسپ بن لهراسپ وۀ د چا په زمانه چې زرتشت د پیغمبرۍ دعوٰی کړې وه او چا چې په اول ځل د بلخ ښار اباد کړے وۀ ـ

د حضرت محمد ص په زمانهٔ حیات سجستان ، هرات د ایران د ساسان خاندان تحت د زرتشت مذهب ګرهـ وۀ ـ کابل و

ګندهارا ، د برهمن شېؤ مذهب اور غور و قندهار د الزوري بُت نمر پرست اماجګاه وه ـ د زابلستان ، بست ، زران ، رُخج ، غزني وغېره د رُتبيل / زنبيل / اردبيل کورنۍ تحت سيمه وه (ايل په عبراني ژبه د طاقت او زور خاوند الله په معنٰی وۀ)

حضرت محمد ص وفات ۸ جون ۶۳۲ء / ۱۲ ربيع الاول ۱۱ هـ او خليفه اول حضرت ابوبکر رض د وفات کال ۶۳۴ء/ ۱۳ هـ وو ـ د حضرت عمر رض په دورِ حکومت د اسلامي سلطنت حدودات وسيع او فراخ شول عن چې د قيصر روم هرقل او شاه ايران ساسان خاندان يزد ګرد درېم په هر محاذ اسلامي منظم لښکر نه شکست بيا موند ـ ۶۳۷ء / ۱۲ هـ سعد بن ابي وقاص رض د يزدګرد لوے لښکر ته د قادسيه په مقام شکست ورکړو او ايراني سپه سالار رُستم بن هرمز مېدان جنګ کښې قتل شو ـ بيا ۶۴۲ء/ ۲۱ هـ کښې د نهاوند په مقام يزدګرد درېم شکست وخوړو ـ خراسان ته راؤتښتېدو او د مرو په مقام د شنسب کورنۍ د مرو حاکم ماهويه سوري ۶۵۲ء / ۳۱ هـ کښې قتل کړو ـ د ماهو يه سوري نژاد په دې بهادرۍ حضرت عثمان رض خوشحال شو ـ دوي د حضرت علي رض په لاس بيعت وکړو مسلمانان شول او وروستو د شنسب عم زاد (د ترۀ زوے) شيث هم اسلام قبول کړو ـ دغه زمانه حضرت عثمان رض درېم خليفه برسرِ اقتدار وۀ ـ

د ساساني حکومت خاتمه او د اسلامي خلافت احياء باوجود د کفر او اسلام جنګ جاري وۀ ـ چې په دوئ کښې د رُتبيل کورنۍ د اسلام قبوليت نه ببخي انکاري وه ـ اسلامي لښکر خپل

اولني مرکز کرمان او بیا زرنج نه خپلو حملو ته دوام ورکړو ـ خو د هغوي پر مختګ کښې رُتبیل یو زبردست خنډ وؤ ـ څو بادشاهان ئې هم قتل شول ـ د غور په علاقه هم الزوري (نمر پرستی) بُت پرستي عام وه او هېڅ قوت او طاقت مخې ته راتلے نشو ـ

د ټول اسلامي ذرائع مطابق د حضرت محمد ص د وفات کال ۶۳۲ء/ ۱۱هـ دے ـ د مخزن افغاني مطابق قیس عبدالرشید د اسلام قبولیت ۶۲۹ء / ۸هـ دے ـ د یزدګرد قتل ۶۵۲ء/۳۱هـ ښودلے شي یعني یو ویشت کاله پس ـ

۱۰۱۰ء/ ۴۰۱هـ کښې د امیر محمود غزنوي په غور حمله هم په دغه جواز وه چې غوریان کافران وو ـ اومونږ اسلام پلو راوستل غوښتل چې بېخي غلط دلیل وؤ اګرچې دغه جنګ محمود د جنګي چال په ذریعه وګټلو ـ د اوږدې ناکامه محاصرې پس ئې غزني پلو ډېر په تېزۍ تېښته اغاز کړه ـ د امیر محمد بن سوري لښکر ئې تعاقب شروع کړو ـ د غزنوي لښکر یکدم راواپس شو او دوي ئې ګېره کښې واخستل ـ امیرمحمد غوري ګرفتار شو خو د ګرفتارۍ دوران ئې زهر وخوړل وفات شو ـ او د ذلیل مرګ نه ئې خودکشۍ ته ترجیح ورکړه ـ

۸۶۱ء / ۲۴۷هـ کښې یعقوب لیث صفار د سیستان امیر صالح بن نصر دربار کښې رسائي حاصل کړه ـ د عرب او پښتون تر مېنځ د نفرت اور په غرغنډو وؤ ـ صالح د عرب اجاره دارۍ منودو ته تیار نۀ وؤ ـ د رُتبیل کابل شاه نه ئې امدا طلب کړو ـ بل خوا د یعقوب لیث او صالح تر مېنځ هم تعلقات خراب وو ـ یعقوب لیث

۸۶۵ء/ ۲۵۱هـ راسي د طخارستان ، بلخ ، هرات ، بادغيس ، طبرستان ، ګرګان او عن چي ۸۷۲ء/ ۲۵۹هـ کښي په نيشاپور قابض وۀ ـ وروستو رتبيل د لاتعداد فوځ باوجود يعقوب ليث نه شکست وخوړو ـ د جنګ دوران قتل شو ـ يعقوب ليث وليدل چي د غور فتح مشکل دۀ ـ د ځو جيد علماء څخه د بست په لار غور ته لاړو او د دواړو ډلو تر مينځ د خيرسګالي او په امن او سکون وسپدو معاهده لاس ليک شوه ـ تر دغه وخته چي د غور په تنګو درو کښي استوګن کافران وو هغه هم مسلمانان شول ـ

يعقوب ليث ۸۷۹ء /۲۶۵هـ کښي وفات شو ـ د هغۀ ورور عمرليث تخت نشين شو خو ۸۹۲ء / ۲۷۸هـ کښي د ساسان بادشاه اسماعيل بن احمد څخه د جنګ دوران ګرفتار شو ـ دا د المعتضد بالله شپاړسم عباسي ۸۹۲ء تا ۹۰۲ء زمانه وه ـ د صفاريانو حکومت ۹۰۲ء/ ۲۸۹هـ کښي مکمل ختم شو ـ

# ژبه

ژبه د الله پاک یو لوی نعمت دی . د ډېرو پخوانو ژبو ابتداء معلوم نه ده چې دې کښې پښتو هم شامل ده . ژبه د قدرت په امر وجود کښې راځي او ختمېږي . پښتو لکه چې اندازه ده . د غور خواؤ شا د ایران او افغانستان په سرحدات یا د افغانستان چرته سیمه کښې د مختلف نسلونو مېل ملاپ ، ارشه درشه ، تګ راتګ ، د بېلو بېلو ژبو یو بل سره معاشي ، تجارتي او معاشرتي سلسله کښې راغونډ بدل د یو نوې ژبې د ابتداء پېدا وښت ، جوړښت ذریعه او وسیله شوه چې وروستو جغرافیائي حدود کښې دې اباد نسلونو علاقیت اختیار کړو . د اجتماعي قوت په وجه نورو علاقو ته د معاشي ضروریات او ښاروؤ د خوراک څښاک دپاره نوې چراګاه او ځرند ځای تلاش سبب شوه . مضبوط نسلونو کم قوته ځان سره مدغم کړل او د ژبې ساخت او جوړ مستحکم شو . د فارس په سرحد ترکستان ، خراسان ، بلخ ، سیستان ، مېډیا ، د هندوکش په لمنو یا یوه بله منطقه کښې د اجتماعي مرکز نه رابرڅېره شوه .

د پښتو ژبې ویونکې حامل پښتون آراکوسیه (یوناني نوم) الرخج (عربي) خلج (فارسي) خلج (پښتو) یا ساکوستانه (یونان) سجستان (عربي) سیستان(فارسي) نیمروز (پښتو) او یا زابلستان،

بُست ، زمینداور ، کابل ، غزني ، قندهار ، ارغسان وغیره علاقو کښې ئې عمومیت بیا موند۔ خو هر کله چې دوي د خپل اصل ټاټوبي نه د رزق په تلاش نورو علاقو ته منتقل شول ۔ نو په دغه کښې یوه ډله د غور شاړ ، بنجر او غرئیزه علاقه کښې داخل شول او د ګېر چاپېره غرونو دغه بند علاقه کښې ئې امن او سکون حاصل کړو ۔ ددغه ځایه دوي بهر ته یا بهر نه دغلته د چا راتلل مشکل او ګران کار وۀ ۔ لار ګودر نۀ وۀ ۔ نو په دغه وجه دوي لکه د یو مارغۀ په قفس کښې بند شول ۔ ځکه خو دې ځاے ته کوهِ قفس هم وائي ۔ د غور د فتح په نیت ډېر اقوام د حصول کوشش جاري وساتۀ ۔ خو پخپل مرام او مقصد کښې ناکام شول ۔ غوریان دغلته زیات شول او د ژوند ضروریات ئې نۀ پوره کېدل ۔ د غوریانو یوه ډله په هجرت مجبور شول ۔ د پنجکوړه په علاقه اباد شول او یوه ډله د ایغور (غور) نه د سنکیانک (چین) د کاس /کاش (سنسکرت پمعنٰی د روڼ ، روښانه ) د غرونو خوا کښې اباد شول ۔ دا د سکندر اعظم ( ۳۲۰ق م ) د یلغار نه اګاهو واقعات دي ۔ هُن نمر پرست قوم چې ۵۰۰ء کښې د ایران د تباهۍ نه وروستو د مهرکله په مشرۍ کښې دلته راورسېدل ۔ نو بُت پرست کوشانیان ئې تباه و برباد کړل ۔ ددې ځایه غوریان خپل اصلي وطن غور ته د ساکا په مناسبت شخا او یوسفزي بالشتان ته واپس وتښتېدل او هلته بېرته بیا اباد شول ۔ البته ځینې دلته چرته غرونو کښې د هُن د یلغار او تباهۍ نه بچ شول ۔ چې د بهلول لودهي د فرمان پورې هلته یا دلته اباد وو ۔

وائي چې د تواريخ له مخه د ايران د پاستان نسل جمشيد اولنۍ بادشاه وۀ چې د غور غرونو دننه شو ـ چې دغه ځاے د خپل بادشاهت تحت کړي ـ خو د غوريانو ځوانمرد ضحاک ورله شکست ورکړو ـ راؤتښتېدو ـ خو ضحاک[1] ئې په تعاقب وۀ ـ او هغه ئې قتل کړو او د جمشيد پايه تخت بابل بادشاه ضحاک شو ـ څۀ موده پس د جمشيد نمسے فريدون راپاسېدو ـ ضحاک نه ئې د نيکۀ پايه تخت بېرته قبضه کړو ـ ضحاک ئې قتل کړو ـ د هغۀ دوه زامن سام و سُور غور پلۀ راؤتښتېدل ـ پلار ګنې مقام ئې خپل کړو ـ سُور بادشاه

---

[1] د ضحاک په نوم يوه قبيله په خروار کښې ، څۀ پغمان کښې اباد دي ـ د پغمان نزدې ابراهيم خېل دي ـ چې ۱۸۴۹ء کښې د پېښور نه اميردوست محمد خان سره کابل ته لاړل ـ د عبدالله خان بهادر کلي په مشرۍ کښې دغلته اباد شول ـ زۀ چې ورکوتے وم د ابراهيم خېل پغمان کابل نه څو تنه دلته راغلي وو ـ حاجي محمد اکرم خان سره حجره کښې ډېره وو ـ او مونږ خلقو سره ئې شناخت ښودلو ـ عبدالله خان غالباً ۱۸۸۳ء کښې وفات شو ـ ددې کورنۍ د امير دوست محمد خان زوے شېرعلي خان سره ورانه راغله د عبدالله خان مشر زوے سعدالله خان انګرېز سرکار سره روابط قائم شول او خپل کلي ته ۱۸۸۲ء کښې بېرته واپس راغلل ـ انګرېزانو د هغۀ يو زوے عبدالکريم خان فوځ کښې بهرتي کړو چې وروستو اعزازي کپتان شو ـ خېرپور (سندھ) سره جوخت ئې ورته درې سوه جريبه زمکه اعزازاً ورکړه چې تر دې دمه دغه زمکه د دوي په نوم موجود او قبضه ده ـ د عبدالکريم خان يو زوے عبدالرحيم خان وروستو د بريګېډئير په اعزاز ريټائرډ شو چې څو کاله وړاندې د کېنسر په مرض وفات شو ـ
د سعدالله خان دوېم زوے عبدالجبار خان په ژوب ملېشياء کښې د صوبېدار ميجر په عهده مقرر وۀ ـ د زړۀ اټېک په سبب وفات شو ـ د مومند قام تولۀ ملېشياء ددۀ په ولقه کښې وه ـ د بارې مومند ډېر شاه زلمي ئې په ژوب کښې بهرتي کړل ـ د دوي په مرګ عمران نومې يو شاعر ډېر دردناکه مرثيه ليکلې ده چې ما سره ئې هم يو نقل موجود دے ـ د بولټن بلاک دننه غرباً يو بورډ لګېدلے دے چې د خان بهادر عبدالجبار خان له اړخه اووۀ سوه روپۍ امداد په توګه دغه تخته باندې د دوي نوم درج دے ـ

او سام سپه سالار شو ـ د سام زوے او د سُور لور یو بل سره په نکاح وو ـ د سُور غورېونه د سام (وفات شده) د زوے خلاف سازشیانو ډک کړل. د سام زوے (غالباً شجاع) او د سُور لور شپه په شپه د غور نه اوتښتېدل ـ د زارِ مرغ په خوا کښې ئې په مندېش کښې پناه واخسته ـ د ضحاک د يو زوے نوم بسطام وۀ چې د هندو سنده حکمران وۀ ـ د ضحاک یا سام و سور ژبه څۀ وه ـ یقیني طور پښتو وه که چرې پښتو نۀ وه نو تر ننه د پېښور په سیمه اباد غوري پښتنو ژبه به پښتو نۀ وه ـ د سام او سور ژبه د شک و شبهات نه بالا لازمي طور پښتو وه ـ

د سام و سور نه وروستو د دوي د اخلاف شجره جات باقاعده طور محفوظ لیکلې را روانه وه ـ دې دوران څۀ واقعات پېښ شول ـ تواریخ خاموش دے ـ زرگونه کاله وروستو چې ملک محمد سوري د غور بادشاه شو او محمود د غزنه حکمران شو ـ نو دغه زمانه شیخ اسد سوري د "تاریخ سوري" په نوم یو کتاب مرتب کړو ـ او د سام و سور نه تر امیر محمد سوري تر وخت ئې د غور د سردارانو او شاهانو واقعات درج او محفوظ کړل ـ

دا هغه زمانه وه چې فردوسي شاعر د "شاهنامۀ فردوسي" په نوم په اُجرت د محمود غزنوي کارهائے نمایان پدغه کتاب کښې بیان کړل ـ بقول شاهنامه فردوسي :

یکے نامور پیش او اندرون

جهاندیده ای نام او کرسیون

دغسې فخرالدين مبارک شاه د غياث الدين محمد غوري د دربار
مؤرخ وائي :

1. چې غور کښې د ''کور اسون'' په نوم يو غر موجود دے -
زمونږ د زمانې ليکوال کرسيون يا کوراسون د خرشبون په
نوم يادوي - تحقيق غواړي -
د فردوسي نه علاوه د امير محمود په دربار کښې نور ډېر
فارسي ژبې شاعران لکه د فردوسي استاذ طوسي ،
حکيم عنصري وفات ۴۳۱هـ ، بخطاب ملک الشعراء
عسجدي (مرثيه نګار) فرضي ، دقيقي وغېره موجود وو -
ولې د غزنه برعکس د غور شاهانو ادب ته څۀ خاص نۀ
ورکوۀ -
غزنه د مېداني او غور د غرئيزې علاقې وطن وۀ - غزنه د
بهرني قوتونو د حملو مرکز وۀ ولې په غور د حملې جرأت
د هر چا کار نۀ وۀ -

2. د غوريانو دوېم اهم کتاب د فخرالدين مبارک شاه د نظم
په ژبه بِلا معاوضه واقعات او شجره ده چې اول ئې د
علاؤالدين جهان سوز دپاره وليکلۀ خو په يو يا بله وجه ئې
دغه اهم کار نيمګړے پرېښودو - خو بيا ئې د محمد
غوري دپاره مکمل کړۀ - او هغۀ ته ئې حواله کړۀ - طبقات
ناصري د فخر الدين مبارک شاه په حواله ليکي :
فخرالدين مبارک دغه شجره يعني د شيخ اسعد سوري
''تاريخ سوري'' پخپلو سترګو ليدلے وۀ - او استفاده ئې

ترې کړې وه. او دغه د نظم په ژبه شجره کښې د شنسب نه تر ضحاک مکمل واقعات و حالات درج وو. چې د شيخ اسعد سوري د "تاريخ سوري" رانقل وو.

3. درېم اهم کتاب طبقات ناصري دے چې قاضي منهاج سراج جوزجاني د غوريانو متعلق ليکلے دے. دا کتاب تقريباً په هره لائبرېرۍ کښې موجود دے. دا ليکونکے د غوريانو په دربار کښې د يو مؤرخ او سفارتکار په حېث متعين وۀ.

4. د علي بن محمد البُستي "تاريخ سوري"

وضاحت: ما د ګورې اسپې په ۳۷۸ د ابوالفتح علي بن محمد البُستي (وفات ۱۰۱۰ء/ ۴۰۱هـ) ذکر کړے دے. خو داسې ښکاري چې د دوي د وفات کار وروستو دے.

1. د نعمت الله هروي کتاب مخزن افغاني تصنيف ۱۲۴۲ء/ ۱۰۲۱هـ

2. لرغوني پښتانهٔ از شيخ کته متي زئ (تاريخ نامعلوم)

3. پټه خزانه ۴۲ـ ۱۱۴۱هـ (تاليف در قندهار) د شاه حسين هوتک په امر محمد هوتک بن داؤد بن قادرخان تاليف کړه.

خپله اندازه لرم چې د خان جهان لودهي په ايماء چې نعمت الله هروي مخزن افغاني ليکلو نو هغهٔ ته احساس وشو چې د غوريا خېل د جدوجهد مکمل تواريخ موجود دے. ولې بل طرف د ډېرو پښتنو قبائل تواريخي او شجرات معلوم نهٔ دي. نو هغهٔ د نورو ډېرو نسخو چې صرف د هغهٔ په تصرف کښې وې. استفاده وکړه.

هغۀ دا هم کتلي نۀ دي چې پښتون د سېدانو نه يو عليحده قوم دے د پښتون دا عادت دے چې خپل شجرات محفوظ نۀ ساتي . عن چې د خپل نيکۀ نوم هم ورته عموماً معلوم نۀ وي . ولې سېدان او علمي کورنۍ باقاعده خپل شجرات محفوظ ساتي . دې سلسله کښې د هغۀ د قول معلومات محور هم دغه سېدان ، مياں ګان يا موليان صاحبان وو . د پښتنو شجره نسب ئې خالد بن وليد څخه منسوب کړو او قيس عبدالرشيد ۶۲۹ء/ ۸هـ کښې د حضورؐ خدمت کښې حاضر شو . بطان پټهان شو . او د ''ملک'' په خطاب سرفراز شو . د خرشبون درې زامن بيټ ، غورغشت او سړه بن شول د سړه بن اولاد غورے خشے شو . چې د غوريا خېل او يوسفزي جد امجد شول . د شاهنامۀ فردوسي مطابق د محمود غزنوي کرسيون او د محمد غوري په زمانه د کوراسون يعني د خرشبون نوم د پښتون د تواريخ يوه برخه شوه .

د شنسب د کورنۍ برعکس نعمت الله هروي يو خود ساخته کتاب مخزن افغاني د افسانوي داستان په شکل نوشت کړو . او دغه نور پښتون قبائل ئې د خرشبون برعکس د شرخبون اولاد ظاهر کړل . او بيا ددغه کتاب اساس پټه خزانه ، لرغوني پښتانۀ او بې شماره نور کتابونه منځ ته راغلل او د غوري ، سام و سُور نومونه په تورو تيرو کښې پټ شول . خو نمر په ګوته نۀ پټېږي . د معزالدين سام ، شېرشاه سوري نومونه فاتحانه صلاحيتونو ثابته کړه چې غوريان څان د قيس عبدالرشيد اولاد نۀ ګڼي بلکې د ضحاک سره خپله رشته ښائي او د هغوي اقرار په دغه قوم کښې

خپل تواريخي اسناد دي ـ چې مضبوط او محکم دي ـ د شاهنامهٔ فردوسي په حواله :

هیونی براگند بر شانِ باد
به نزدیک ماهویه سوری نژاد

ماهويه د مرو حاکم وۀ ـ يزدگرد چې د نهاوند په مقام عربو نه شکست وخوړو ـ خراسان ته راورسېدو ـ اسلامي لښکر ئې په تعاقب وۀ ـ يو ژرنده گړي څخه ئې پناه واخسته ـ ماهويه سوري ته ددهٔ پناه گاه معلومه شوه ـ راغلو او دے ئې قتل کړو ـ د يزدگرد سوم ساساني په قتل خليفه وخت ډېر خوشحال شو ـ ماهويه د باج و خراج په پېشکش او مردانگۍ د مرو مستقل حاکم شو ـ مسلمان شو ـ دغسې د غور د سيمې شنسب هم د حضرت علي رض په خدمت کښې حاضر شو او اسلام ئې قبول کړو ـ

د نعمت الله هروي دپاره ضروري وه چې د شنسب نه اگاهو نورو پښتنو قبائلو دپاره دغه اعزاز اول کړي ـ نو د قېس عبدالرشيد يوه فرضي قيصه ئې په افسانوي انداز کښې وليکله ـ او داسې شجره النساب ئې مرتب کړل چې انسان ئې په سر او بېخ نهٔ پوهېږي ـ د قېس نوم ئې کسي او سلېمان کوه ئې کس غر سره مشابهه کړۀ ـ د طالوت [4] د "ملک" اعزاز ئې پښتنو ته منسوب کړو او پښتانهٔ د امير ، ملک ، سلطان او تاتاريانو نه وروستو د خان په اعزاز سرفراز شول ـ او د سام و سُور اخلاف د پېښور په علاقه د خان په خطاب سرفراز دي ـ چې د مومند په هر کلي کښې د سام و سُور د اولاد په سبب خانان دي ـ د مغل يا انگرېز د خطابات

په سبب نۀ دي ـ د ګوډ تېمور نه پس د سادات خاندان په ''شاه''
سرفراز شول او دغسې د هندوستان سُوريان د شاه لقب اختيار
کړو ـ لکه شېر شاه سُوري ، عادل شاه وغېره ـ

وائي چې ۱۲۰۹ء / ۱۰۱۸هـ کښې ملک عنبر په دکن
کښې سرکش شو ـ نو جهانګير بادشاه د مرهټهٔ د شورش په خاتمه
خان جهان لودهي مقرر کړو چې دغه مهم کښې نعمت الله هروي هم
ورسره مل وۀ ـ د دکن د صوبيدار پرګنه ملکاپور ښار کښې د هيبت
خان کاکړ بن سلم خان کاکړ په امداد او تعاون ۱۲۱۱ء / ۱۰۲۰هـ
کښې د پښتنو قبائل په تاريخ ليکلو لاس پورې کړو ـ چې څۀ موده
وړاندې ۱۲۰۹ء / ۱۰۱۸هـ کښې ورته خان جهان لودهي هدايت
جاري کړے وۀ ـ هغۀ د دکن مغليه سلطنت تحت برهان پور کښې
۱۲۱۲ء / ۱۰۲۱هـ کښې دغه کتاب د مخزنِ افغاني په نوم مکمل
کړو ـ د نعمت الله هروي نه وړاندې دې سلسله کښې چا هم څۀ
کوشش کړے نۀ وۀ ـ حېرانتيا ده چې نعمت الله هروي د اګره نه ډېر
لرې دا کتاب ليکي ـ دې سلسله کښې د پښتنو مرکز پېښور ته هم
تشريف نۀ راوړي ـ نو داسې ددۀ د وړاندې د پښتنو د شجرات
• داسې کوم کتاب وۀ چې دۀ يو کال دننه مخزنِ افغاني تحرير کړو ـ

د آدم نه تر طالوت په اسرائيل کښې د بادشاه تصور نۀ وۀ
طالوت اولنے اسرائيلي وۀ چې د ''ملک'' يا بادشاه په خطاب
سرفراز شو ـ فلسطينيانو څخه د جنګ دوران د ملک طالوت قتل،
برخيا او ارميا ددۀ زامن د حضرت داؤد عليه السلام په زمانه په
اعلٰی عهدو تقرري او وروستو د حضرت سليمان عليه السلام په

زمانه اصف بن برخیا او افغنه بن ارمیا د حکومت اعلیٰ عهدېداران وو. د حضرت سلیمان[4] افسانوي لیجنډري کردار تخت سلیمان او هلته نه د هندوستان نظاره کول او د سیمرغ په وزرو ناست دلته تک راتک د مخزن افغاني د ځانه جوړه قیصه ښکاري. د نعمت الله هروي سره زمونږ په دې بیان ضرور اتفاق دے۔

''حیرت کا مقام ہے کہ افغان بادشاہوں، امیروں اور وزیروں کے حالات اور ان کے عہد کے واقعات کو کسی تاریخ میں نہیں لکھا گیا۔۔۔۔ اور اُن کے شجرہائے نسب کے بارے میں کسی کو کچھ یاد نہیں۔ کہ وہ کوہ ہندوکش، کوہ سلیمان اور کوہ فیروزہ کے علاقوں میں کیوں آباد ہوئے۔ یہ لوگ پہاڑوں کے گھاٹیوں اور صحراؤں میں زندگی بسر کرتے رہے ہیں۔ اس لئے زیادہ تر گمنام جیئے۔''   مخزن افغانی ص ۳۳

"غوری اور قیس نام مؤرخوں نے بغرض امتیاز دو شاخ افاغنہ کے رکھے ہیں۔ غوری سے باشندگانِ غور ہے اور قیس سے مراد اولاد قیس عبدالرشید ہے۔ جب غوری خاندان میں سلطنت آئی تو مؤرخوں نے اُن کا نسب ضحاک سے جا ملایا۔"   نسب افاغنہ ص ۲۰

"یہ امر قطعی ہے کہ غوری کا شاہی خاندان افغانوں کی ایک شاخ سوری سے تھا۔ اور اُن کا خاندان گیارہ صدی عیسوی میں بھی نہایت قدیم خیال کیا جاتا تھا۔ اُن کے خاص شہر غور، فیروز کوہ اور شاید بامیان تھے۔"   تاریخ افغانستان (گزیٹیر) از الفنسٹن

د غور ، سام و سُور متعلق نۀ يوازې دا چې د تاريخ سوري په نوم دوه كتابونه او د فخر الدين مبارك شاه قصيده موجود وه بلكې د سوريانو او غوريانو اقتدار كښې راتګ سره سم د هغوي نومونو سره سام ، سور او غوري مربوط شو ـ اخېر هغوي خپلو نومونو سره د خپل اسلاف نومونه ولې مربوط او محفوظ كړل او تقريباً دوه زره كاله وقفه نه وروستو داسې څۀ ذرائع ، ماخذات او منابعات وو چې هغوي ته دا معلومه شوه چې زمونږ اصلي نيكۀ ضحاك وۀ او مونږ د هغۀ د نسل اخلاف يا باقيات يُو ـ بيا د دوي يو نيكۀ شنسب د حضرت علي رض په لاس بيعت وكړو ـ بل خوا نعمت الله هروي داسې ولې ضروري وګڼل چې زۀ د دغه شجرونه وروستو يو شجره نسب داسې ترتيب كړم چې هغه د غور د مؤرخين نه اګاهو شي او زما دغه اقدام نه وروستو راتلونكي مؤرخين زما بالمقابل بې بس شي ـ د شاهنامۀ فردوسي ''كرسيون'' ئې ضرور خرشبون كړو خو دډې نوم برعكس ئې يو بل متضاد نوم شرخبون پېدا كړو او د غوريانو نه علاوه دغه نوم ئې د نورو قبيلو جدامجد وګرزوۀ ـ

متي زي ، شيخ كبير يا شيخ امام الدين وغيره علمي او سيد كورنۍ وې ـ د پښتنو په نزد د هغوي احترام پخپل ځاے ولې د هغوئي عربي النسل هم لازمي وۀ ـ او هر كله چې د غور پښتانۀ د بهلول لودهي په فرمان پېښور ته منتقل كېدل نو ضروري وه چې پښتنو سره سم د پير و مرشد او دعاګو سېدانو راتلل هم مناسب وو ـ د شيخ كټه شجره نسب د شېرشاه سوري پير و مرشد شيخ خليل ته ورسېدۀ ـ ځوك چې شېرشاه سره سم د بارودو په دهماكه كښې شهيد

شو ـ خو د اکبر په زمانه کښې يو بل خليل چې ولي الله وۀ ـ د بيربل په تورقه بد دعا کوي او هغه د بُنير د کړاکر په غرونو کښې د پښتنو د لاسه مړ کيږي ـ چې نعمت الله ئې د دغه شيخ خليل بد دعا بولي ـ

# علاقائیت

1. مُلک په معنیٰ د جغرافیائي حدود دے ـ د ملک هم معنیٰ الفاظ دېس ، ولایت ، وطن ، کشور ، اقلیم دي۔
2. قوم یا قومونه ددغه ملک د پهچان او شناخت سبب ګرځي هر ملک کښې یو لوے قوم یا ذات یعني د ډېرو خاندانونو (کورنو) نسلونو مجموعه خپل (کهول) د یو لوے خاندان یا قوم تصور پېش کوي ـ د ورکوټو قومونو یا کورنۍ په شمولیت د دغه ملک د قومیت نظریه مزید مضبوطه شي که څۀ هم ددغه ورکوټي قومیت حېثیت کم او د نیشت برابر وي۔خو بیا هم لوے قومیت یا اصل ذات ته قوت ورکوي۔
3. د قوم د "اصل" ماخذ نسل وي۔نسل د قوم په جوړښت او ارتقاء کښې فوقیت او اهم مقام لري۔که نسل کمزور وي۔د بل غلام وي او که نه مضبوط او حوصله مند بهادر وي ـ نو لوے لوے قومونه خپل محتاج او تابع کړي ـ د څوانمردي، تورزنۍ ، جدوجهد او د سوچ و فکر یو والے دغه نسل یا قبیله فرش نه عرش ته ورسوي ـ د مضبوط معیشت خاوندان شي او د دنیا په مخ خپله اجاره داري قائم کړي۔ چې یو زمانه د پښتون مثال زمونږ په وړاندې پروت دے چې د زبردست اعلیٰ اقدار ، قوت او اوصاف مالکان وو۔

جغرافیائي حدود د قومیت ، قومیت د نسلیت او نسلیت د خېل (کهول) او خېل د خاندان محتاج وي ـ پښتون د نسل یا قومیت په لحاظ از قبل اسلام ښکاري ـ مومند هم ما قبل اسلام کورنۍ وه خو خلیل داؤدزي د اسلام نه پس اقوام دي ـ د قبیلو په سطح مومند د تولو نه لویه قبیله ده چې کوز او بر مومند ، تیرائي مومند (ننګرهار) د کابل د نغزک سیمې مومند ، د غور مومند او غوریا خېل مومند د یو لوے عظیم جنګجو قوم په حېث د پښتون پښتو په عوامي سطح موجود وۀ ـ او ددې قوم په خوا کښې د ایران پهلوي، ژند ، فارسي په سرکاري سطح اهمیت وۀ ـ د پښتنو خط و کتابت او د سرکاري امور ژبه فارسي او پهلوي وه ـ خو د عام پښتنو ژبه پښتو عام رواج لرلو ـ د محمود غزنوي په زمانه حسن مهمندي د عربۍ ژبې اثر تحت حروف پښتو دپاره وضع او ترتیب کړل ـ قوائد او رسم الخط ئې برابر کړل او دغه نه پس پښتو هم په تحریري شکل کښې مقام بیا موندلو ـ

سید جمال الدین افغاني د پښتنو متعلق لیکي :-

" اہل ایران ان کو افغان کہتے ہیں ۔ اس نام کی وجہ یہ بتاتے ہیں کہ جب بخت نصر نے ان لوگوں کو گرفتار کیا تو یہ لوگ آہ و فغان کرتے تھے اور فارسی میں آہ وزاری کو فغان یا افغان کہتے ہیں۔

یہ بھی کہا جاتا ہے کہ شاؤمول (شالامو) کے پوتے کا نام افغان تھا۔ اور یہی افغانوں کا مورثِ اعلیٰ ہے ۔ ایران کے عوام ان کو اوغان ، افغان ، ہندوستان والے پٹھان ۔ جبکہ افغانیوں کے بعض

قبیلے مثلاً قندہار اور قرن کے باشندے اپنے آپکو پشتون اور پشتان اور خوست، کُرم اور باجوڑ کے باشندے اپنے آپ کو پختو اور پختان کہتے ہیں۔ پاشتان (پاستان یا پیش آدی) ایک مقام ضلع نیشاپور میں موجود ہے۔ یا شاید یہ الفاظ خراسان کے ایک شہر پاشت سے ماخوذ ہوں۔ اور یا یہ دونوں لفظ فلسطین کے ایک قریہ بثیت سے ماخوذ ہوں۔ "

ماخوذ از تاریخ الافغان، مصنف سید جمال الدین افغانی ۱۸۳۹ء تا ۱۸۹۷ء (ترجمہ سید عبدالقدوس ہاشمی)

د سید جمال الدین افغاني د یو عربي کتاب البیان فی تاریخ الافغان، سید جمال الدین افغاني مخکښې لیکي:

" کہ افغان متعدد قبائل کا مجموعہ مثلاً غلزئی، ابدال، کاکڑ، وزیری، یوسفزی، مہمند، افریدی، بنگش وغیرہ پھر غلزئی کی شاخیں خٹک، توخی، سلیمان خیل اور باخیل وغیرہ۔ بعض ارباب تاریخ کی رائے ہے کہ یہ لوگ بحر خزر[1] (خضر) کے باشندے ہیں۔ جو سواحل بحر کا سپین، باب الابواب اور شروان شہر میں رہا کرتے تھے۔ اور بلاد ایران میں غارت گری کیا کرتے تھے۔ زمانہ نامعلوم میں بعض بادشاہوں نے انہیں بلاد خراسان کے مشرق میں لے جا کر آباد کیا۔ "

د سید جمال الدین افغاني د پښتنو د اصل نسل متعلق دا سرسري خاکه راښکل ضروري وو چې د پښتنو لیکوالو په علم کښې د سید جمال الدین افغاني دا کتاب راشي. هغوي د یو اعلىٰ مرتبې

[1] بحرِ خضر Caspian Sea شېروان د شمال خراسان ښار وۀ.

خاوند او زبردست لوے لیکوال وۀ ـ او د هغۀ رائے ډېر لوے سند لري ـ لکه اندازه کوو چې :

1. د غوریانو د جدید مسکن غور نوم د خپل قدیم مسکن وادي غور واقع ارضِ شام په یاد کښې دے ـ
2. د شام او د ضحاک زوے سام د نومونو مشابهت ـ
3. دغسې د شام اولنے نوم سوریا او د ضحاک زوے سُور په نومونو کښې یو والے د شنسب او شیشاني (ساسان) تر مېنځ د حکمراني جنګ هم د تربورۍ جنګ ښکاري ـ

(تاریخ الافغان ، ص ۲۴)

# سائنسي انکشافات

د سائنس د تحقیقات مطابق کروړونه کاله اګاهو په خلاء کښې محض ګېسونه وو ـ د کائنات د ظهور نه وړاندې ماده په یو تور تیپ ګړپ کښې راغونډه شوه ـ دغه غار کښې د کشش دباؤ زیات شو ـ محمدود ماده لامحدود شوه ـ او یو زبردسته او زورداره دهماکه Big Bang په فضا کښې وشوه چې ورته بېګ بېنګ وائي ـ ددې دهماکې په سبب د پوکنۍ پوستکي یا ذرات خلاء کښې ترمې ترمې یو خوا ته پرېوتل ـ او ددې درز په سبب کائنات وجود کښې راغلل او ذرات د ستورو ، سیارو ، سپوږمۍ ، نمر ، زمکې اشکال بیا موندل ـ نمر د اور خپل اصلي شکل اختیار کړو ـ د مادې د کم تعداد نمۍ او زېم د زمکې حېثیت حاصل کړو ـ او چې د ګرم اور نه یخه شوه نو مختلف ګېسونه پېدا شول ـ اکسیجن ، کاربونېټ، هائیډروجن ، نائټروجن وجود کښې راغلل ـ انسانان، حېوانات ، نباتات ظهور بیا موندو ـ د کائنات تغیرات ، غلط کشش یا نور وجوهات په بناء د ذي روح تباهي او اختتام د الله په حکم نازل شوه ـ خو د بارک تعالیٰ مرضي وه چې ذي روح برقرار وساتي ـ دنیاد سره دوباره اباده شوه او انساني وجود سر دوباره قائم شو اوس هم بعید نهٔ ده چې الله پاک انسان ته د هغهٔ په نافرمانۍ سزا ورکړي او د زمکې په مخ د ذي روح وجودیت ختم او

فنا کړي او غالباً د کروړونو کلونو د Big Bang نظريې نه وروستو
څو ځله د کُن فيکون په حکم داسې واقعات واقع شوي دي او د
وريځو شلېدل ، د باران شرق سېلابونه ، د زمکې دننه د تهه
ياپليټونو ټکراؤ ، د زلزلو جټکې ، د ګېسونو اخراج د اور ګرمه
لاوه ، د قدرت نظامِ کائنات کښې لړ الغاؤ تلغاؤ وغېره د الله پاک د
قدرت داسې عوامل دي چې زمونږ د غلط اعمالو اسباب وي او بيا
د هغه لوے الله پاک په حکم نوې دنيا هم جنم اخستے وي او د آدم
ارتقاء شوې وي۔

انسان د ژبې او تحرير په ذريعه نور انسانانو سره خپله
رشته قائم وساتله ۔ ددې مقصد دپاره اول هغۀ تصويري اشکالونه
کار واخستو او بيا دغه تصويري شکلونو د املا او تحرير مقام
حاصل کړو ۔ مونږ ته چې تر اوسه معلومه ده د هسپانيه په غارونو
کښې تقريباً شل زره کاله اګاهو تصويرونه دي چې Hieroglyphic
انسان په خپل لاس په دېوالونو جوړ کړي دي ۔ Hieroglyphic
مطلب دا شو چې د ليک اغاز د تصوير په شکل اغاز شو او خپل
خيال و فکر د تصويري عکسونو په ذريعه بل ته منتقل شو ۔ دغه
تصويرونه Pictograms يا مصورات ياديږي ۔ دا قسم تصويري
اشکال د ايشياء ، افريقه ، جنوبي امريکه ، چين او هندو پاک
کښې موجود دي ۔ نن هم دغه تصويري رسم الخط مونږ د ټريفک د
نظام ځينې علامات په سړکونو ، شاهراه ، چوکونو او پارکونو
کښې وينو او يا دغه علامات د اخبارات په صفحات د کارټون په
شکل ګورو ۔ خپل خيالات او سوچ بل ته رسول کۀ څۀ هم محدود

طریقه ده خو دغه محدود تصویري رسم الخط د مېخي او خروشتي اشکال بنیاد شو ـ د خروشتي رسم الخط وروستو صوتي شو ـ د ژبې بنیادي غږونه یا آواز او بیان علامتونو د حروف حېثیت اختیار کړو ـ په موجوده وخت کښې د صوتي رسم الخط پینځه غټ مقبول شکلونه دي ـ

1. عربي رسم الخط
2. لاطیني یا رومن رسم الخط (انګرېزي او نورې یورپي ژبې)
3. یوناني رسم الخط
4. سرایک رسم الخط
5. دیوناګري رسم الخط

د دنیا د نورو ژبو په شان پښتو هم ډېره زړه ژبه ده ـ د رسم الخط او املاء طور طریقه ئې هم پخوانۍ ده ـ وائي چې د اسلام د راتګ نه اګاهو دا ژبه په خروشتي رسم الخط یا سنسکرت طرز تحریر کښې وه ـ د اسلام د راتګ نه پس ددې ژبې لیک تحریر عربي رسم الخط کښې شو ـ اندازه ده چې د مومند قوم یو سپوت ، دانشور او قلمکار خواجه احمد حسن مېمندي د محمود غزنوي دورانِ حکومت سرته ورسوؤ او د عربۍ ژبې خاص حروف ئې ورته وضع کړل او دا ژبه ئې په نسخ رسم الخط کښې اغاز کړه ـ وروستو د نورو ژبو حروف تهجي هم پکښې شامل شول او پښتو د اصوات غږ یا اواز په لحاظ یوه جامع ژبه شوه ـ پښتو د طرز تحریر او املا په لحاظ د نورو ژبو بالمقابل اسانه ژبه ده او هر غږ Sound د پاره

مخصوص حروف لري او په دې ژبه کښې د نور حروف د شاملېدو
گنجائش هم ډېر زيات دے-
د ضحاک په زمانه يا اګاهو د پښتو څۀ ژبه وه- وثوق څخه
معلوم نۀ ده خو کومه ژبه يعني پښتو چې اوس د غوري قبائل ژبه
ده لکه چې هغه زمانه ئې هم دغه ژبه وه- البته دا ژبه په کوم رسم
الخط وه- لازمي ده چې د عربي رسم الخط نه مخکښې ئې په بل
رسم الخط يا املا او ليک دود وه-
د سائنسي انکشافاتو مطابق ممکن ده- دغه سوچ ناقص
او غلط وي خو اسلامي نظريه پيداوښت ، موجوديت او ارتقائي
سفر بېلا شک و شبهات دے- د قرآن پاک نظريه تخليق د هر
مسلمان د ايمان جزو دے[1]-
د بابا آدم او بي بي حوا د پيدائش نه وروستو انساني
تعداد زيات شو-
"دغه وخت د ژمکې په مخ محض يوه ژبه وه خو هر کله چې انسان
مشرق ته رُخ وکړو نو هغوي د سنعار په ملک کښې په يو مېدان
کښې ډېره شول- هغوي خپلو کښې اووئيل چې راځئ مونږ خښتې
جوړې کړو او په اور کښې ئې پخې کړو او دلته ځان د پاره يو ښار
اباد کړو او يو داسې بُرج تعمير کړو چې سر ئې پورته اسمان ته
رسيږي چې ژمونږ نوم تل تر تله مشهور او ياد وي- او مونږ په ژمکه
يو ځائے او سو- خو الله پاک ته د دوي دغه اراده قبوله نه وه- دوي

[1] تفصيل د پاره زما کتاب يهوديت او پښتانۀ وګوري-

ترېتر شول۔ د ښار تعمیر ئې پرېښودو۔ په دې وجه د دغه ځائے نوم "بابل" شو۔ (تورات پېدائش بُرج بابل ۱۱: ۱ تا ۸)

## اهم نکات دادي

ددې بیان نه زمونږ د مقصد اهم نکات دادي۔

1. دغه رخت د زمکې په مخ محض یوه ژبه وه۔
2. د انساني جتو مشرق پلو مخه۔
3. په زمکه د یو ځائے اوسېدو خواهش
4. تفرقه او ترېتر کېدل۔

## د مولانا عبدالقادر (مرحوم) د طنز و مزاح دلچسپ انداز

مونږ د ارواښاد مولانا صېب نه یوه ورځ په کلاس کښې تپوس وکړو۔

سوال :- مولانا صېب د دنیا اولنۍ ژبه کومه یوه وه؟

مولانا صېب :- پښتو

سوال :- دا څنګه؟

جواب :- ګوره پېنځه شرپو[1] ۔ دومره نۀ پوهیږې چې د الله پاک صفات نهۀ نوي "۹۹" دي او د دغه ټولو صفاتو هر یو د "الله" نوم دے۔ پښتون یو داسې قوم دے چې د دوي په ذات کښې د دغه صفاتو زیات مقدار موجود دے چې نور اقوام ترې محروم دي۔

[1] د مولانا صېب د طنز و مزاح په وخت تکیه کلام۔

لازمي ده چې د بابا آدم ژبه د الله پاک ژبه وه چې آدم ته پرې اول ځل مخاطب شو او هغهٔ ته ئې د هر څيز نوم اوښودو ـ او بيا د خودي او بې خودۍ ـ د پښتو او بل ته د پښتونولۍ درس متعلق يو تفصيلي تقرير د مولانا صيب كمال وهٔ ـ د مولانا عبدالقادر (مرحوم) دغه مزاحيه او طنزيه بيان كه هر څهٔ هغه وخت يو ټوقه وه چې زما په ذهن اوس هم دغه ټوقه لكه د كاڼي كربنه ښكاري ـ

د تورات مطابق انسان مشرق پلو خور شو ـ ځكه چې هغوي زيات شول او د خپل رزق لټون دپاره د زياتې زمكې ضرورت وهٔ او دغسې د هغوي مال مويشي (څاروۍ) د څرند دپاره د چراګاهانو ضرورت وهٔ چې خپل څاروي پكښې په ازاد مټ اوساتي ـ دوي نورو علاقو ته منتقل شول ـ او دغه سلسله آدم عليه السلام نه تر نوح عليه السلام اتهٔ زره پينځهٔ اويا كاله (۸۰۷۵) مستقل جاري وهٔ ـ عن چې د نوح عليه السلام په زمانه د باد و باران او سېلاب طوفان په سبب زبردسته تباهي وشوه چې د الله پاك د فرمان مطابق د هر ذي روح صرف يوه جوړه پاتې شوه او دغه پس سر دوباره انسان د بقا ارتقاء دوام بيا موندلو او د نوح عليه السلام زوے سام اولاد تر حضرت ابراهيم عليه السلام څهٔ درې زره كاله وهٔ ـ ځېنې پښتانهٔ وائي چې مونږ دراصل ددغه سام اولاد يُو چې خپل ځاني ورځخه اتفاق نهٔ لرم بلكې مونږ د ضحاك د زامنو سام و سُور اولاد يُو ـ

د تورات مطابق چې د عراق بابل ښار نه د ډېرو كورنو ډلې جتې مشرق پلو په كډه شول نو دغه كښې يوه ډله داسې هم وه چې د غور غورنو ته راورسېده ـ دوي اوليدل چې دا اوږده سيمه د دوي د

طبیعت مطابق او پُر امن خطه ده .د دنیا د لانجو او جنگ و جدل نه مبراء ده او دلته ځوک هم شر فساد ، حملو ، قبضو او زمونږ تر مینځ د درنگ او فتنو جرأت کولے نشي .نو دلته ئي د پُر امن ژوند شروعات اغاز کړو.

---

# نظامِ حکومت

د شـاهي نظـام تشـکیل وۀ چـې عجـم و فـارس کښې د بادشاهت ابتداء وشوه او فارس کښې د یوناني ژبې ایلو روس او اهل عجم و فارس مطابق کیومرث بادشاه شو ـ د چا لقب چې ګل شاه وۀ ـ د کلدانیانو اولنے شهنشاه هم دے وۀ د بادشاهانو دا خاندان په (پاستاني) پېش دادي هم مشهور وۀ ـ

کیومرث نه وروستو هوشنګ بادشاه شو او هوشنګ نه پس طهورث د فارس اولنے حکمران وۀ چې د فارسي ژبې د لیک دود ابتداء ئې وکړه ـ د طهورث د مرګ نه پس د هوشنګ زوے جمشید بادشاه شو ـ وائي چې جمشید د حضرت ادریس علیه السلام ولي عهد وۀ ـ دۀ خلق په څلور ډلو کښې وېش کړل ـ فوځیان ، کرکرونده ګر ، تجارت پېشه ، تعلیم و تربیت او د علم اشاعت ـ

ضحاک د خونخوار ، ظالم او قسماقسم تضحیک امېزاو تذلیل په الفاظ یاد شوے دے ـ ضحاک نه وروستو هر اعلیٰ پښتون حکمران د ظلم زیاتي مجسم یاد دے ـ هر ایراني مؤرخ هغوي څخه جوخت مېشتۀ غوریان د خپل نرتوب او بهادرۍ په بناء په غلط الفاظ یادول خپل فخر ګڼلو ځکه چې هر بهادر انسان د کمزوري قوم په نظر کښې د سترګو ازغے وي ـ

ضحاک د تکړه او نر پښتون قوم مشر او سردار وۀ ـ پښتو، پښتون د ضحاک نه ډیر اګاهو د دوي ژبه او نسلي نوم وۀ ـ اګرکه د دوي ژبه یا لیک دود د نورو ژبو مرهونِ منت وه ـ یا دا ژبه په داسې اجنبي لیک دود وه چې متروک شوه ـ یا فارسي لیک دود وۀ چې د فارسي نه علاوه د پښتنو هم دفتري ژبه وه او وروستو ئې د یو مومند سردار حسن مهمندي په برکت عربي رسم الخط شو۔

1. پښتون د چا جنګجو سردار ، مذهبي پېشوا ، دانشور ، بادشاه یا د یو لوے شاعر ادیب تخلص یا نوم وۀ۔
2. پښتون نوم نه وروستو مومند ، اسلام نه اګاهو قبیلوي شناخت وۀ ـ د مومند د پلار نوم ''کرے'' ښودلے شي۔
3. ګور (عبراني) غور (عربي) په معنٰی د غر وه ـ او ددغه غر په مناسبت پښتانۀ استوګن د غریزې علاقې شول او نور ځایه د روه (سرائیکي) روهیله ، افغان (ارمن) کوهستاني (هند) وغېره علاقو کښې مشهور شول۔

# ضحاک

د جمشېد بادشاه په زمانه بېوراسپ المعروف ضحاک سرزمینِ مشرق کښې راپورته شو. ضحاک کافر او ساحر وۀ. پوره سل کاله جمشېد د ضحاک د لاسه فرار وۀ. اخېر گرفتار شو او قتل شو.

د اصحاب تواریخ د بیان مطابق "بېوراسپ د خراسان د مشرق د غور د سیمې نه راپورته شو او د جمشېد په سلطنت قابض شو.

وائي چې ضحاک د غور د پښتنو مشر او حکمران وۀ. جمشېد وغوښتل چې د غور غرئیزه سیمه پخپل سلطنت کښې شامل کړي ځکه چې ددغه دشوار گزار سیمې فتح ډېر مشکل کار وۀ. او بیا په تېره تېره ضحاک ظالم سرکش او جادوگر وۀ. د پلار نوم ئې ارنداوسپ وۀ چې د عرب بادشاه وۀ. د اهل فارس لیکوال ضحاک عرب نژاد یا تازي گڼي چې صحیح نۀ ده او د ایراني لیکوالو محض خپله ذهني اختراع ده. ضحاک د غور نژاد پښتنو یو بهادر ځوانمرد وۀ چې د ایراني عوام د غور قبضې سوچ ئې دړې وړې کړو او ضحاک د جشمېد شکست نه پس د بابل د تخت مالک شو.

د ایراني مؤرخین مطابق اژدهاک ، سهاک ، ضحاک ، دهاک، الساک که یو خوا هغه د پښتون په ځای عربي بولي نو بل اړخ وائي چې د ضحاک په دواړو اوږو دوه غټې اژدهاګانې وې چې عام عوام دپاره د خوف او ویرې علامات او نخښانې وې۔

"جب جمشید نے خدائی کا دعویٰ کردیا۔ تو بیوراسپ مشرق[1] (غور) میں ظاہر ہوا۔ وہ کافر اور ساحر تھا۔ ضحاک ظالم سرکش اور جادوگر تھا۔ ضحاک نے باپ کی گزرگاہ میں کنواں کھودا۔ ارندواسپ اس میں گر کر ہلاک ہوگیا۔ اور ضحاک بادشاہ بن گیا۔ اس کے دونوں کندھوں پر گوشت کے دو ٹکڑے ابھر آئے تھے جیسے سانپ ہوں۔[2]"

ضحاک د پښتون نسل اولنی حکمران وۀ چې ایراني النسل مؤرخین ئې په قسماقسم الزامات غندي ۔د فارسي ادب د یو شاعر دا شعر ملاحظه کړئ۔

زسگ عفعف ، ز زاغان غان گرفتند
ازیں دو نام خود افغان گرفتند

سید جمال الدین افغاني لیکي :-

"بعض اہل تاریخ نے افغانوں کو ضحاک "ماردوش" کی اولاد میں سے بتایا ہے یہ وہی ضحاک ہے جو ایرانی دیومالا کا ایک بادشاہ ہے جس

[1] خراسان کے مشرق میں واقع غور کا علاقہ

[2] طبقات ناصری، ص ۵۸۲

کے متعلق مشہور ہے کہ اس کے دونوں کاندھوں پر دو بڑے بڑے مسے تھے جو سانپ سے نظر آتے تھے۔" تاریخ افغان ص ۲۴

شاهنامه فردوسي د ضحاک متعلق ليکي :-

که آں پور را نام ضحاک بود

دلیر و سبکسار و ناپاک بود

ہمی بیور سبش ہمی خواندند

چنین نام بر پهلوی راندند

کجا بیور از پهلوانی شمار

بود بر زبانِ دری دِہ ہزار

از اسبانِ تازی بر زین شام

ورا بود بیور که بُردند نام[1]

وائي چې د موسیٰ علیه السلام په زمانه د کوم فرعون ولید بن مصعب بادشاه وؤ ـ د ضحاک تابع او نامزد بادشاه وؤ ـ د هغهٔ تعلق د شام عمالقه خاندان څخه وؤ ـ د دغه فرعون حکومت څلور سوه کاله وؤ ـ

د حضرت موسیٰ علیه السلام زمانه اندازتاً ۱۵۳۰ ق م تا ۱۴۱۰ ق م وه ـ د سام و سُور د نسل غریق زمانه حکمراني ۲۲۱ء تا ۲۹۹ء وه او دغسې څهٔ دوه زره کاله پس چې د غوري حکمراني د یو لوے اوږد دور بیا بحال شي ـ د دغه خلاء باوجود د غور د

---

[1] شاہنامہ فردوسی، ص ۲۹

بادشاهانو په نوم کېښي د خپل اسلاف او مشرانو ذکر باقاعده جوت او ښکاره وي لکه سیف الدین سوري ، غیاث الدین محمد سام ، معزالدین محمد سام ـ بهاؤ الدین سام ، د سام و سُور د القاب استعمال ښائي چې دوي پخپل دورِ حکومت کښې د خپل نیکونو نومونه ژوندي وساتل او یا د غوریه سیمه د ضحاک د دوؤ زامنو سام و سُور شهرت عام وؤ ـ ددغه شهرت تاثر دے چې اوس هم د پښور خواؤ شا درې قبائل مومند ، خلیل او داؤدزي د غوري یا غوري خېل په نوم دغه تسلسل جاري دے او ددغه سام په مناسبت خان سامي النسل بولي ـ نه چې د نوح علیه السلام د زوے سام اولاد ـ

ضحاک چې بادشاه شو نو هغهٔ د پاستان پېشه ادي خاندان دا دستور ختم کړو چې هر بادشاه به خپل نوم سره د خاندان د سربراه نوم ''ګاو'' شاملوؤ ـ

د ضحاک د قتل نه وروستو د هغهٔ دوه زامن بابل نه اوتښتېدل ـ نهاؤند ته را ورسېدل او دغه ځاے نه د غور غرونو ته راغلل ـ د هغهٔ مشر زوے سُور د غور امیر الامراء او کشر زوے سام سپه سالار شو ـ د سام و سُور شجره نسب غوریانو ته او بیا د غوریانو دغه شجره مومند قوم ته رارسي چې کابل ښار ، ننګرهار، ترائي ده بالا پښور او بر مومند کښې اباد دي ـ دغه وجه ده چې د مومندو قول دے چې مونږ د غورې مرغۍ نه راغلي یُو مطلب واضح دے غوره په معنٰی د غور او مرغۍ یا مرغه پمعنٰی د مېدان ده ـ او غور کښې دا لفظ زارِمرغ دے یعني د مېدانونو

ځای ـ زما د ګوري اسپې اشاعت وروستو د "غوري" په نوم دوه لیکوالو سکندرخان وېسه او حسن خان خلیل آبدره (سابقه ډپټي کمشنر پشاور) کتابونه شائع کړل ـ د حسن خان د کتاب مخکتنه کښې زهٔ خاکسار هم شامل وم ـ د ډاکټر انورخان سابقه وي سي او چئیرمېن شعبه تواریخ د مدلل تقریر دوران محمد غوري په بیا بیا هغه تُرک نژاد اوښودلو ـ د چایو دوران ما اول د هغهٔ د تقریر ستائنه وکړه او بیا مې هغهٔ ته ووې چې ډاکټر صېب محمد غوري تُرک نهٔ وهٔ بلکې اصلي پښتون وهٔ او د پېښور ښار چاپېره درې قبیلې مومند، خلیل، داؤدزي اصلاً غوري قبائل دي ـ او د هغوي کورنۍ سره ئې تعلق دے ـ او شېرشاه سوري هم د سام و سُور کورنۍ څخه تعلق لري ـ خو زما دغه تنقید ته هغهٔ هېڅ اهمیت ورنکړو ـ او پخپل دلیل غاوره پاتې شو ـ

سُور نمرپرست وهٔ ـ سوریا الزوري ډېرلوے بُت وهٔ ـ اسوریا، سوریا، سورستان سورج (فارسي پهلوي) مهر سوریا (سنسکرت + شمس (عربي) کون کونتهس (ترکي)، سُور متهرا، مهرا، رع (عنبراني) وغېره پرستش عام وهٔ ـ نمر د فصلونو، میوؤ، انساني افزائش دیوتاوو، د پښتونخوا قبائل چې د هُن د بربریت دلاسه ۵۰۰ء کښې خپل هَم قوم سره بامیان کښې پناه واخسته نو هغوي د الزوري بالمقابل د بدهه یو لویه مجسمه سازه کړه چې وروستو طالبانو دړې وړې کړه ـ د سام و سور د بادشاهت نه وروستو څوک د غور حاکمان وو معلوم نهٔ ده ـ خو داسې ښکاري چې د ګوري (غوري) او ایغور یوه لویه ډله د پښتونخوا د پنجکوړه یا پنجګوري

سیند پہ یو یا بلہ غاړہ مہشتۂ شول ۔او ایغور د سنکیانک او کاشغر پہ سیمہ بود و باش اختیار کړو ۔ د پښتونخوا ګوري د هُن د بربریت پہ سبب یوہ لویہ جتہ ۵۰۰ء کښې خپل اصلي وطن غوري تہ واپس لاړل او ځینې مومند دلتہ د بر مومند غرونو کښې پټ پناہ شول او د ایغور خلق اوس هم چین کښې مہشت لري ۔ د چین او بغداد سفارتي تعلقات د عثمانیہ دورِ خلافت دوران ۷۵۱ء کښې قائم شول او د ترکستان پہ لار ۷۱۳ء و ۷۲۲ء دوران مضبوط او نور استوار شول۔

''تکش غاثر بقاخان رئیس ایغور پر حملہ آور ہوا تھا'' طبقات ناصری ص ۵۵۴

د هُن عقیدہ مذہب د کُشان د بت پرستیٖ خلاف وو ۔ هغوي دلتہ پہ زرګونو بدھ بھکشو قتل کړل ۔ د بدھ مت عقیدتمند ګوري بامیان کښې اباد شول او اسپازي د غور شرقاً جنوباً برخہ غیر آباد علاقہ کښې آباد شول بالشتان چې یوہ غیر آباد علاقہ وہ او د قندهار پہ علاقہ کښې شامل وہ ۔ هغوي دغہ ځاے د ګندهارا پہ نوم یاد کړو چې د عربو پہ ژبہ قندهار شو ۔ د الزورې یا السُوري مجسمہ پہ غور کښې د طاقت او زور مظهر او بامیان کښې د بدھہ لوړہ دنګہ مجسمہ پہ غرونو کښې تراش د عقیدت د یو او بل دهرم شاهکار نمونہ جات وو۔

د ضحاک د شکست نہ پس د هغۂ زامن د بابل ښار نہ فرار شول۔

'' جب ضحاک کے فرزند اِدھر اُدھر بکھر گئے تو شنسب (اخلاف ضحاک) نے علاقہ غور میں اقتدار حاصل کیا۔'' (طبقات ناصری)

د سام د وفات نه پس د هغهٔ زوی د سُور لور سره کوژدن یعني "چنغله" وه ۔وادهٔ ئې وکړو خو ځینې کسانو د سُور په زړهٔ کښې د خپل ورارهٔ خلاف وسوسه پېدا کړه ګوندې د سام زوی په تخت قبضه غواړي ۔دواړه ښځه خاوند شپه په شپه غور نه د زار مرغ خوا کښې مندېش "اندېښنه مهٔ کوه" ته وتښتېدل او هلته اباد شول۔

د منتخب ناصري مطابق :

" یہ کتاب غزنہ کے ایک بزرگ نے سلطان غازی معزالدین محمد سام کے عہد سکونت میں مرتب کی تھی۔ روایت یہ ہے کہ جب افریدون نے ضحاک پر قابو پالیا اور وہ تمام ملکوں پر قابض ہوگیا تو دو بھائی جو ضحاک کے فرزند تھے نہاوند پہنچ گئے۔ بڑے بھائی کا نام سُور تھا وہ امیر بن گیا۔ چھوٹے بھائی کا نام سام تھا۔ اسے سپہ سالاری مل گئی۔ امیر سُوری کی ایک بیٹی اور سپہ سالار کا ایک بیٹا تھا۔ بچپن ہی سے ان دونوں کی منگنی ہو چکی تھی اور وہ دونوں ایک دوسرے کو دل دے بیٹھے تھے۔ سپہ سالار سام نے وفات پائی۔ تو اس کا بیٹا بڑا بہادر او جنگجو نکلا۔ دلاوری میں اس جیسا کوئی نہ تھا۔ باپ کی وفات کے بعد اس کے حاسد پیدا ہوگئے اور انہوں نے امیر سُور کے پاس اس کی جھوٹی شکایتیں شروع کردی۔ چچا کا دل اس پر پھر گیا اور ارادہ کرلیا کہ بیٹی کی شادی اطراف کے کسی رئیس سے کردے۔ بیٹی کو باپ کے اس ارادے سے اگاہی ہوئی تو اُس نے منگیتر کو اطلاع دے دی۔ وہ رات کے وقت آیا۔ قلعے کا

دروازہ کھولا۔ امیر سُور کے اصطبل سے دس گھوڑے چنے۔ اپنی
منگیتر اور ساتھیوں کو ان پر سوار کیا روپیہ جتنا ساتھ لے سکتا تھا
لے لیا۔ اور رخصت ہوگیا۔ تیزی سے غور کے کوہستان میں پہنچ
گیا۔ اور وہیں سکونت اختیار کرلی۔ لڑکی اور لڑکا بچ نکلے تو ایک
دوسرے سے کہا۔ زومیندلیش (اس سے نہ ڈر) چنانچہ اس مقام کا
نام "مندلیش" مشہور ہوگیا۔ انہوں نے ناموری حاصل کی۔ اور
ان کا سلسلہ حکومت استوار ہوگیا۔'' (طبقات ناصری ص ۵۸۳)

ضحاک د خپل حکومت دوران یو زوے ''بسطام'' د هندو سنده
فرمانروا جوړ کړے وۀ۔ افریدون یو لوے لښکر د بُسطام د تباهی
په غرض هندوستان پلؤ ولیږلو۔ خو بسطام اګاهو نه د غور غرونو
ته رارسېدلے وۀ۔ د افریدون دوه زامن تور او سلم د هغۀ په تلاش وو۔
خو په لاس ورنغلل۔ بسطام شقنان، کوهستان او بامیان کښې پناه
واخسته۔ افریدون دوہم ځل دغلته فوج کشي وکړه خو ناکام شو۔
بسطام غور او زارِ مرغ ته راغلو او دلته اباد شو۔

د افریدون اراده وه چې دریم ځل د بسطام خلاف فوج کشي
وکړي خو د هغۀ ورکوتے اونیازبین زوے ایرج د خپل نور دوه
زامنو تور او سلم د لاسه قتل شو۔ افریدون د هغۀ په قتل ډېر غمژن
شو او بسطام نه د انتقام اراده ئې ترک کړه۔ بسطام د وخت د نزاکت
نه فائده پورته کړه۔ افریدون ځخه ئې صلح وکړه۔

منهاج سراج لیکي ''چې غور کښې لاتعداد د اوبو چینې دي او
ددې ځاے نوم هزار چشمه هم دے۔ بسطام په زار مرغ کښې

سکونت اختیار کړو زار په معنی د ځای او مرغ په معنی د میدان.
د اکثرو پښتنو په ژبه دا ذکر عام دی چې مونږ د غوري مرغی نه
راغلي یو .خو دا خبره د مومند قوم په ژبه سم ښکاري ځکه چې
غوري قبائل خپل اصل نسل ضحاک او شنسبي خاندان سره
مربوط کوي .شنسب اولنی غوري حکمران وه چې د حضرت علي
رض ۶۵۲ء تا ۶۶۱ په لاس ئې اسلام قبول کړو .د دوي څلور
طبقات وو د اول مرکز زارِ مرغ دويم فيروز کوه دريم باميان څلورم
بادشاهان هند.

# بسطام دوم

د ضحاک درېم زوے چې د هندو سندهـ حکمران وۀ ـ او د ضحاک د طرف نه حاکم وۀ ـ چې د افریدون د برسر اقتدار راتګ په سبب واپس خپل پلارګني وطن غور ته راستون شو ـ طبقات ناصري کۀ یو اړخ د هغه بسطام ذکر کوي نو بل پلؤ د یو بل بسطام شجره نسب لیکي چې د ړومبني بسطام د واقعات څخه تړون نه بېخي جدا ښکاري ـ او د واقعات ګېپ یا خلاء ښائي ـ ممکن ده چې د نور اهم زاړۀ کتابونو په لوستو پوره او واضحه شي خو کم از کم د زیات عمر په سبب ما دپاره دغه خالي او غیب د حالاتو سلسله ترتیب بیا نۀ مومي ـ نو زۀ دا کار راتلونکي مؤرخینو ته پرېږدم ـ

**شجره بسطام دوم** :- بسطام بن مشهار بن نریمان بن افریدون بن مرساس بن سبامند بن سبېداسپ بن ضحاک بن سهراب بن شېداسپ بن سیامک بن مرساس بن ضحاک " "طبقات ناصري ص ۵۸۲"

د حضرت موسٰی علیه السلام نه تر حضرت عیسٰی علیه السلام ددغه دیارلس کسانو موجودګي څۀ خاص اهمیت نه لري او د دوي دور په اوړو کښې د مالګې برابر حېثیت د ے ـ

د غور د علاقه مندېش په "خطه سنګه" کښې د بسطام په نوم یوه زبردسته قلعه ، دېوالونه ئې تر زارمرغ د لمنو پورې اوږدۀ وو او دغلته په یو غونډۍ محل تعمیر وۀ ـ دولس بُرج ئې وو ـ په هر

بُرج کښې د ہرش کھړکۍ وې ـ شپږ بُرج مشرق او شمال جانب او شپږ برج مغرب او جنوب جانب وو ـ

منهاج سراج ليکي : ”چې شقنان او طخارستان کښې بې شماره د اوبو چينې دي ـ افريدون چې د بسطام تعاقب جاري وساتهٔ ـ هغه غور او بيا ”زارِمرغ“ (زار په معنٰی د ځاے او مرغ په معنٰی د مېدان ده) راغلو ـ او بسطام هلته مېشتهٔ شو ـ د کوزې پښتونخوا ډېر ځايه د مرغه نوم په معنٰی د مېدان موجود دے ـ موسٰی زئ کښې د مرغه مېدان ، د صوابۍ مرغز وغېره ـ

# الزوري

داسلام راتګ څخه سم احمد بن یحیٰی چې د بلاذري په نوم شهرت لرلو . د ۸۷۲ء / ۳۵۵ هـ خواؤ شا د سجستان ، کابل د فتوحات ضمن کښې وائي چې ۷۰۱ء/ ۳۰ ه کښې عبدالرحمان بن سومره د سجستان تسخیر وروستو د ارخلج په لار زمینداور ته ورسېدو . او ددغه ځاے وسېدونکي ئې جبل الزور کښې محاصره کړل. خو وروستو صلح وشوه.

هغه یو زوړ طلائي ( شرو زرو) بت په نوم یادوي چې یاقوتي سترګې ئې وې. په لاس ورغلو . ددغه بُت دواړه لاسونه ئې پرې کړل. یاقوت ئې قبضه کړل چې ددې بت څۀ خاص ضرورت او فائده نشته هغه بیا د بُست و زابل په فتح روان شو . دۀ نه پس نور مؤرخین لکه ابو زید احمد بن سهل بلخي وفات ۹۴۳ء/۳۲۲ هـ په خپل کتاب الاشکال یا صورالاقالیم ( ۹۲۰ء/۳۰۹ هـ ) او هغۀ نه پس اصطخري ۹۲۱ء / ۳۴۰ هـ المسالک والممالک کښې ددې بُت نوم جبل زور راوړي . او یاقوت پخپل کتاب کښې زور و زون ضبط کوي او د زمینداور په علاقه ئې ښائي.

د مؤرخین مطابق د اسلام نه اګاهو هم دغه بُت شهرت درلود. چیني سیاح هېوان تسانګ ۲۳۰ء/ ۹ هـ دغه بت لیدلے وۀ او د ''شونا'' په نوم ئې ذکر کوي . او وائي چې دغه مجسمه د غر

دپاسه آباده وه ـ د نمر د پرستش رب النوع وۀ ـ د اسلام نه اګاهو دغه خلقو د نمر پرستش کوۀ ـ د اسلام د راتګ وروستو د زور نوم د سُور او سوري شکل اختيار کړو۔" (پټه خزانه ص ۲۲۱)

"سوری طائفه معروفی بود در غور ـ که اکنون هم موجود بوده ـ د زوری نامیده میشود اصطخری معروف در (۳۴۰ھ) آنرا بنام المسالک د الممالک تهذیب کرد ـ نیز ذکرے ازیں بُت د معبد جبل زور آورده اند" پټه خزانه ص۲۲۱

بمطابق شيخ عبدالجبار بن الحسن البيهقي شاعر عصر مسعود:

تنبــــه ايهـــا المغـــرور وانظـــر
الـــی آثـــار مســـعود و ســـوری
ولاتختـــر بالـــدنيا ســـرور آ
فـــان المـــوت يهـــدم كـــل سُـــور

"اسم "زور" در عصور بعد از اسلام توسیع می باید ـ و بصورت سور و سوری تبدیل می شود ـ و به این نام قبائل و بلادی معروف میگردد ـ" پټه خزانه ص ۲۲۲

ځينې پخواني ليكوال الزوري ، السوري شُونا دَ زُونا او زُون د هندوانو شپږ يعني Sun god په نامه هم يادوي ـ

**د ساكوستانه صفاري خاندان** :- ليث صفار د سجستان / سيستان/ نيمروز د ډېر لوے دولت او جاه و جلال خاوند وۀ ـ د هغۀ څلور زامن يعقوب ، عمر ، علي او معدل وو ـ دغه زمانه د خراسان امير محمد بن طاهر د طرف نه د سجستان والي ابراهيم بن الحصين مقرر وۀ او ليث صفاري د خاص اهميت وړ انسان وۀ ـ د نيمروز غازي يمين الدين بن تاج الدين حرب بن عز الملوك محمد بادشاه

وۀ ـ د امیر صالح د وفات نه پس یعقوب لیث د سجستان په اعلیٰ عهده ۸۶۵ء مقرر شو ـ هغۀ څۀ موده پس (د قندهار غرباً واقع) زابلستان زمینداور او د (بُست شمالمغرب) او غزنه قبضه کړل ـ ۸۷۰ء کښې طخارستان ، بلخ ، کابل ، هرات ، بادغیس ، جام فتح کړل ـ ۸۷۳ء کښې نېشاپور ګرګان ، طبرستان قبضه کړل ـ دا د عباس خلیفه الموفق بالله زمانه وه ـ د څوارلس کاله حکومت نه پس یعقوب لیث ۸۷۹ء کښې وفات شو ـ خو هغه یو فقیر طبع ، خاکسار او ملنسار انسان وۀ ـ د هغۀ ګڼ شمېر ملازمانو نه علاوه ډېر مریدان او پېروکار وو ـ ددۀ د انسانیت او اسلام پرستۍ په برکت ډېر کافران مسلمانان شول ـ د هغۀ د پښتنو په سیمه هم زبردست اثر وۀ ـ په دغه وجه ډېر پښتانۀ هم مسلمانان شول ـ د یعقوب لیث نه پس د هغۀ ورور عمر لیث بادشاه شو خو د امیرالمؤمنین المعتضد بالله په نزد هغه یو ناکام حکمران وۀ ـ خلیفه د خراسان حکومت محمد بن طاهر ته حواله کړو ـ خو عمرو لیث هغۀ ته شکست ورکړو ـ امیر اسماعیل بن احمد سامانې د موقعې د نزاکت نه فائده پورته کړه ـ دریائې جیحون نه راپورې وتو ـ بلخ ئې قبضه کړو ـ ۹۰۱ء کښې عمرو لیث شکست وخوړو ـ او دغسې د صفاریانو مختصر حکومت ختم شو ـ

د رُتبیل ۵۵۰ء راسې د هُن خلاف قائم حکومت هم اختتام ته ورسېدو چې د عمر لیث پنځوس زره اسلامي لښکر د رُتبیل درې لکه فوج ته شکست ورکړو ـ او د اسلام پښتون لښکر کافر پښتون فوځ ته ماتې ورکړه ـ

د رُستم پهلوان او سام نریمان اخلاف د هُن د بربریت خلاف
جرګه ، یکجهتي مفاهمت ، د رُتبیل خاندان دپاره یو نیک فال وو.
چې تول پښتانهٔ ددې خاندان په مشرۍ یو اواز او صلاح شول. خو
هُن د خپل ظلمونو په سبب ډېر زر ختم شول. اوس د دوي مخالفت
عربو سره راغلو . عرب غوښتل چې د اسلام پېغام زابلستان ته
راخور کړي . ولې اردبیل دغه دعوت نامنظور کړو . زبردست
جنګونه وشول . خو اخېر کار اردبیل د جنګ مېدان کښې عمر لېث
نه شکست وخوړو . او دغسې د کفر نظام اختتام ته ورسېدو.

زابلستان په لسمه صدۍ کښې د خراسان اسلامي برخه وه
یو زمانه د خراسان او هندوستان حدود یو بل سره مربوط وو. د
تاریخ سیستان لیکونکے پرسي سائیکس وائي چې زابل ۱۰۲۲ء
کښې د سیستان یوه برخه وه او د زابلستان خلق به د هامون د
نخلستان (Oasis) په لار دریائے سندھ نه پورې راتلل.

د اسلامي دور نه اګاهو هُن ۵۰۰ء کښې د ایران الخان او
نیزاک فتح کړل . په اوومه صدي عیسوي کښې تُرک شاهانو په
یولسمه صدۍ کښې هندو شاهیه اوومه تا نهمه صدۍ کښې
زابلستان د اردبیل کورنۍ کابل شاه تحت وه . عربي جغرافیه دان
د الهند بادشاه زنبیل یاده وي . ۹۲۱ء کښې دا ځاے غزنویانو فتح
کړو .

"Material Culture of Medieval Hindu Muslim encountier[1]"

[1] Priston University, 2009 A.D

د سیستان په علاقه کۀ یو اړخ د کرمان نه د الربیع بن زیاد یلغار وو چې اخېر کار ئې د رُتبیل سپه سالار البروېز څخه امن معاهده لاس لیک کړه نو بُل طرف دغه کال ۷۵۱ء کښې د الربیع بن زیاد او عبدالرحمان بن سُمره یلغار جاري وو. د زرنج/ارغستان (قندهار) باندې د یزید بن زیاد ، عبدالله بن اُمیه ، عبیدالله بن ابي بکره ابن لاشعت حملې جاري وې. عن چې ابن الاشعث د حجاج بن یوسف د احکاماتو نه انکار او بغاوت وکړو. تفصیل دپاره د ګورې اسپې ۲۰۶ تا ۲۱۲ وګورئ.

# غور

## د غوري نوم ماخذات

الضحاک چې د جمشید بادشاه نه بابل قبضه کړو نو د عراق شام ، اُردن ، فلسطین ، مصر او شاؤ خوا علاقو ارشه درشه، تګ راتګ غوریانو څخه د بادشاهِ وقت په وجه عام معمول شو ـ د غرئیزو سیمو په مناسبت د عبراني ژبې ګور په معنٰی د غر ده ـ د ګور جمع ګورم په معنٰی د غرونو ده ـ د عربستان فاتح قوم ګور په ''غور'' بدل کړو ـ ځکه چې ګ د عربي حرف نهٔ دے ـ د هندوستان په هندي سنسکرت کښې ګ حرف تهجي دے ـ نو په دغه اساس ګور ګوري عام مستعمل الفاظ دي ـ

ضحاک د حضرت موسیٰ په زمانه بادشاه وهٔ ـ د دغه وخت د مصر فرعون بادشاه ولید بن مصعب وهٔ ـ چې د ضحاک له طرفه د مصر نامزد فرعون بادشاه وهٔ ـ د ضحاک نه اګاهو د غور حکمران څوک وهٔ ـ هیڅ پته نشته البته پښتون په حیث د یو نسل ضرور موجود وهٔ ـ ژبه ئې څهٔ وه ، لازمي طور پښتو وه خو د لیک دود یا تحریر متعلق معلومه نهٔ ده ځکه چې فارسي ژبه په ړومبي ځل ساماني حکمرانانو ۹۵۳ء کښې پخپل ماتحت مفتوحه علاقو

کښې متعارف کړه ـ فارسي اول د ژند (په معنٰی د بکر کانړے[1])
پاژند پهلوي په نوم موجود وه ـ چې د زرتشت مذهبي کتاب اوستا په
دغه ژبه ليکلے موجود دے ـ دا ژبه د ژند ، پاژند او پهلوي د مراحل نه
تېره ژبه ده ـ ولې بل خوا پښتو د غور غرونو کښې بند پخپل مقام
موجود وه ـ البته د نورو ژبو اثرات پرې ضرور مرتب کېدل ـ د شاؤ خوا
اثرات د ترکی ، عربی او څينې نورو ژبو جاري وو ـ د هند د سيمو د
سنسکرت ، پراکرت او هندی اثر هم لازمي وۀ ـ د جنوبي اضلاع هېڅ
څۀ وغېره ټکي اوس هم د تلفظ په لحاظ د فارسي هيچ او چۀ دي ـ په
فارسی کښې د مذکر و مؤنث فرق نشته او دغسې د بې ساه او
جاندار څيزونو کښې د فرق راوستو څۀ خاص طريقه موجود ده ـ لکه
هلک راوله ، بچه رابيار ، يا لړکي راوړه ـ چوب بيار ـ

پښتو د ايرانک آريا د ژبې ټول يعني بلوچي ، پښتو او
فارسي برخه ده ـ د غور عوامي ژبه پښتو ده او تحريري يا سرکاري
ژبه عملاً فارسي وه ـ او کۀ پښتو ئې ژبه نۀ وه نو بيا د پېښور په
سيمه اباد غوري قبائل ولې پښتو وائي ـ غور په معنٰی علاقائي
حدودات وو ـ د ضحاک د دوؤ زامنو سام و سُور تعلق غوريانو سره
مربوط دے ـ شېرشاه سوري هم دغه نسل سره منسلک وۀ ـ

♦ د ايراني مؤرخين مطابق ضحاک يو ظالم جابر بادشاه وۀ ـ

---

[1] د بکر کاني بل کاني څخه په ټکراؤ د اور پېدا کېدو په وجه د زرتشت د ژند نه مطلب
د نور الهی شعلو مراد وۀ ـ خو د ژند ژبه ډېر ګرانه وه ـ نو په دې وجه د زرتشت پېروکارو
د ژوند تشريح او وضاحت په سبب پاژند (يعني دوېم بکره کاني) شو ـ بيا محسوس شوه
چې پاژند د ژند نه هم زيات مشکلات لري ـ د پاژند تفسيرونه وليکلے شول ـ او ددې
نوم ئې اوستا کېښودو ـ "قديم پښتو ، پښتون از سلطان صابر ، ص ۲۳"

- سلطان علاؤ الدین چې د خپل دوؤ ورونو ملک الجبال او سیف الدین سوري د هتک آمېز او تضحیک بدل واخستو. نو مؤرخین هغه د جهان سوز په نوم مشهور کړو.
- د مغلیه سلطنت شاه پرست مؤرخین پښتانۀ دیوانزاده او قبطي بولي[1].
- د مغل غلط الزامات دپاره د باره مومند جلد دوم ص ۲۰۱ وګورئ
- بخت نصر نے انکو لا کر ان پہاڑوں میں بسایا ہے جسے آج کوہستانِ غور یا صرف غور کہا جاتا ہے۔ ان لوگوں نے اپنے جدید مسکن کو اپنے قدیم مسکن وادی غور واقع ارضِ شام کی یاد میں غور کا نام دیا۔ "تاریخ الافغان، سید جمال الدین افغانی ص ۲۴"

غور په وسطي افغانستان کښې ارزګان ، بامیان او هرات تر مېنځ یو پلنه مګر بنجر شاړه علاقه ده. د عالمِ عرب نامور مؤرخ امیر شکیب ارسلان د پښتون قوم متعلق وائي :

"میرے رب کی قسم ! اگر ساری دنیا میں اسلام کی نبض ڈوب جائے کہیں بھی اس میں زندگی کی رمق باقی نہ رہے۔ تب بھی کوہ ہمالیہ اور کوہِ ہندوکش کے درمیان بسنے والوں میں اسلام زندہ رہے گا۔ اور ان کا عزم جوان رہے گا[2]۔"

"افغان نام کی اصلیت مبہم ہے مگر غالباً یہ نام نیا ہے۔ خود افغانوں کو بھی یہ نام فارسی زبان سے ملا ہے اُن کا قومی نام پښتون ہے۔ جس کی جمع پښتانۀ ہے[3]"

الفنستن په Act of kingdom of Kabul کښې لیکي :

---

[1] وګورئ مطلع الانوار

[2] تاریخ افغانستان از مولانا محمد اسماعیل ریحان، جلد اول، ص ۲۱

[3] تاریخ افغانستان از الفنسٹن، ص ۱۰۸، ۱۰۹

"لیکن وہ لوگ جو غور کے پہاڑوں پر ہے وہ خود مختار رہے اور اُن کی قوم کا بادشاہ ان پر حکومت کرتا رہا۔ اور شاہی خاندان اپنا نسب ضحاک سے ملاتا رہا۔ یہ امر قطعی ہے کہ غور کا شاہی خاندان افغانوں کی ایک شاخ سوری سے تھا اور ان کا خاندان گیارہ صدی عیسوی میں بھی نہایت قدیم کہا جاتا تھا۔ ان کے خاص شہر غور، کوہ فیروزہ اور بامیان تھے[1]۔"

د پښتنو سیف الدین اغراق / خرنک / خریق / غریق / غلجي پښتنو زره لښکر څخه د تاتاریانو خلاف جنګ کښې شامل وۀ. د بُست په مقام د پښتنو یو لویه جرګه د جلال الدین خوارزمي په حمایت د جهاد اعلان وشو. دغه وخت چنګېزي فوځ قندهار قبضه کړے وۀ. جلال الدین خوارزمي بُست نه قندهار پلو ورسېدو او

1. تاتاري فوځ ته ئې شکست ورکړو.
2. دوېمه معرکه د غزني او زابل تر مېنځ وه. دلته هم تاتاریانو شکست وخوړو.
3. درېمه معرکه د تولي خان او پښتنو تر مېنځ د پروان په مقام وه. دلته هم تاتاریانو شکست وخوړو.
4. غلورمه معرکه د خراسان د هرات په مقام وۀ. دلته پښتنو او د جلال الدین خوارزمي لښکر شکست وخوړو او د هرات شمس الدین محمد شهید شو.

دې فتح نه وروستو چنګېزي لښکر طالقان، قلعه ګرزیوان، کالیوان، اشیار، فیواد او قلعه سیغر فتح کړل چې د غور بې آب

---

[1] نسب افاغنہ، ص ۴۹

و ګیاه علاقه ده ـ دې دوران د سیف الدین اغراق او سردار امین الملک تر مېنځ په یو اس ورانه راغله ـ سیف الدین خفه پېښور ته راواپس شو ـ دۀ سره سم نوح جهاندار او اعظم ملک خلجي هم د جلال الدین خوارزمي د حمایت نه لاس په سر شو ـ او دغسې تاتاري لښکر دغه ټوله علاقه په وینو خړوب کړه ـ یاد ساتل پکار دي چې د جے پال او انند پال پرله پسې شکست د غور غزنه ، بامیان ، بُست ، زمینداور غوري قبائل پښور کښې په لوے تعداد مېشتهٔ وو ـ اغراق ، خرنک یا غریق په اصل نسل غوریان مومند وو ـ

د جلال الدین خوارزمي ناداني وه چې د یو اس په خاطر ئې جهادي پښتون لښکر خفا کړو او ځان ئې شکست ته مخامخ کړو ـ تقریباً ګټلے جنګ ئې په شکست بدل کړو ـ چې دغه جنګ کښې اتیا لاکهه خلق شهیدان شول ـ د خوارزم شاه محمد غلطي وه چې ۱۲۱۵ء کښې ئې غور پخپل سلطنت کښې جبراً شامل کړو ـ

## اهم معلومات

د خاندان غور د نسب بابت پروفېسر ډورن ، ایلفنسټن ډې ګهنګ شاهنامه فردوسي ، تاریخ فرشته پټه خزانه لیکي چې اصل پښتانهٔ غوریان[1] دي ـ او دوي پخپل شجره نسب فخر کوي ـ

[1] د پښتني قواعد مطابق د غور جمع غوریان دي چې د نورو ژبو برعکس خپل مخصوص قواعدي طور طریقه لري ـ

طبري ليکي :- چې دغه ماهوي سوري مسلمان شوی وؤ . په ۶۵۶ء/ ۳۶هـ کښې جنګ جمل نه وروستو د حضرت علي رض حضور کښې حاضر شو او د هغۀ نه ئې يو ليک واخستو[1] .

فردوسي ليکي :-

هیونی براگند بر شان باد

به نزدیک ماهوی سوری نژاد

ترجمه : هُن د زور سيلۍ په شان (ايران) تباه برباد کړو او سوري نژاد ماهويه ۶۵۲ء/ ۳۱هـ کښې يزدګرد سوم ساساني په مرو کښې د يو ژرنده ګري په ذريعه قتل کړو .

د جنګ قادسيه وروستو سعد بن ابي وقاص مدائن هم قبضه کړو - يز د جرد خراسان پلؤ فرار شو . د حضرت عثمان ۶۴۴ء/ ۲۳هـ تا ۶۵۶ء/ ۳۵هـ دورانِ خلافت : "حضرت عثمانؓ کے عہد میں ماہوے دہقان نے یزدجرد کو ایک پن چکی میں ۶۵۱ء/ ۳۰ھ میں مال و زر کی ہوس میں ایک جھونپڑی کے اندر قتل کر دیا[2] ۔

د تاريخ ناصري مطابق سام و سور د ضحاک دوه ورونه وو - سور مشر او سام کشر وؤ - سور بادشاه او سام سپه سالار وؤ .

د غوري دوړ بادشاهان د سام و سور او غوري کلمه خپل نوم سره تړي لکه بهاؤالدين سام ۱۱۴۹ء / ۵۴۴هـ تا ۱۱۵۹ء/ ۵۵۴هـ ، سلطان غياث الدين محمد سام ۱۱۶۳ء/ ۵۵۸هـ تا

[1] د امير کروړ ياد ، ص ۵۳۴

[2] طبقات ناصری، ص ۳۰۶ تا ۳۰۹

۱۲۰۲ء/۵۹۹هـ ، سلطان معزالدين المعروف شهاب الدين سام محمد غوري ۱۱۴۴ء/۵۶۹هـ تا ۱۲۰۲ء/ ۶۰۲هـ وغېره.

ملک شنسب ولد خرنک د حضرت علي رض په لاس مسلمان شوی وۀ.

ساک، سور ، سام او شنسب د يو قبيلې فرزندان دي چې په مختلف نومونو ياد ېږي. ساک زي په کندهار ، هلمند ، فراه ، نيمروز او د پښتور پلوسی کښې د اسحاق زي په نوم اوسي.

ساکايان پاونده خانه بدوش Gipsy قبيله وه چې د هلمند درياب په غاړه وسېدله. او ددې ځاے نوم اول ساکوستانه ، بيا سجستان او سيستان شو او د پښتور په سيمه دا قبيله د شخي ، خشي په نوم ياد ېږي.

په سيستان ، کابل ، لوګر ، پکتيا او د ننګرهار او پښتور په سيمه اوس هم ساکزي سجزي او اسحاق زي اوسي.

د غوري پښتنو په سيمه چې زميندا ور ئې لوے مرکز وۀ. د نمر پرستی د هغه بت ياد لرنه کېږي چې عبدالرحمان بن سُمره په ۶۵۱ء/ ۳۰هـ کښې مات کړو او د هغه بُت ياقوتي سترګې ئې د خلافت دربار ته ولېږلې . د پښتنو په ذهن تر دغه وخته د نمرپرستی مذهبي دستوره عام وه[1].

پروفېسر ډورن په شرح مخزن افغاني کښې ليکي: "بعض مؤرخين انکو جارجين قرار ديتے ہيں اور بعض تُرک بعضے تاتار اور بعضے مجوسی[2]"

[1] امير کروړ ياد ، ص ۵۴۱

[2] نسب افاغنه، ص ۵۸

پښتانهٔ ځيني اريا او ځيني ئې سامي النسل بولي. ځوک ئې کښين ځوک ئې ارمني "اصلی نام افغانوں کا پختون ہے۔ یہ لفظ عبرانی ہے بعض کہتے ہیں سُریانی زبان کا لفظ ہے[1]۔

غور وسطی افغانستان میں ارزگان، بادغیس، سرپُل، ہلمند، نیمروز، بامیان اور ہرات کے درمیان واقع ایک وسیع و عریض مگر بنجر اور ویران علاقہ ہے۔ یہ سنگلاخ اور ریتیلے ٹیلوں کا مسکن ہے۔

محمود غزنوی و دیگر غزنوی بادشاہوں کی فوج میں بہت سے پٹھان تھے مگر وہ لوگ جو غور میں رہتے تھے۔ وہ آزاد اور خود مختار تھے اور اُن میں اپنی قوم کا بادشاہ تھا۔ اور وہ اپنے بادشاہوں کا نسب ضحاک سے ملاتے ہیں[2]۔

کابل کے بارے میں شرف الدین محمد ابن بطوطہ رقمطراز ہیں۔ کسی زمانے میں یہ بھی ایک بڑا شہر تھا۔ مگر اب یہاں صرف ایک گاؤں ہے جس میں کچھ عجمی قبائل رہتے ہیں۔ جنہیں افغان کہا جاتا ہے۔ یہ لوگ لوٹ مار کرتے رہتے ہیں۔ یہاں بڑے بڑے پہاڑ اور گھاٹیاں ہیں[3]۔

د ابو مسلم خراساني او د بني اميه خاندان اخيري حکمران مروان ثاني تر مينځ جنګ کښې ۷۵۰ء ابو مسلم کامياب شو او بني اُميه بادشاهت ختم شو.

---

[1] نسب افاغنہ، محمد عبدالسلام، ص ۵۵

[2] نسب نامہ افاغنہ، ص ۴۹

[3] نسب نامہ افاغنہ، ص ۱۰۶

قندہار کے آس پاس بُست کے مشرق جانب یعنی قندہار کے جنوب ومشرق میں ایک علاقے کا نام رُخج تھا۔ ازمنہ وسطیٰ میں بڑا سرسبز و شاداب علاقہ تھا۔ یہاں سے ایک سڑک غزنہ اور دوسری سبی جاتی تھی۔ رُخج سے سبی (بلوچستان) چھ منزل پہ واقع تھا۔ اصطخری اور ابن حوقل نے اسے تگین آباد بتایا ہے۔

پښتانۀ په ډېرو قبيلو مشتمل يو قوم دے۔ د نظام حکومت اساس ئې ''جرګه'' ده۔ چې د جمهوريت حکمراني اصلي طرز دے. د دوي تر مېنځ د جنګ و جدل واقعات ډېر کم پېښېدل. د بهرني قوت دا منظم قوم د سُپر پاور Super Power طاقتونو خلاف متحد او يو موټے وي. برطانيه، روس او امريکه غوندې لوړ طاقتونو ته شکست د دوي د لوړ همت، اتحاد او اتفاق نخښه ده. غزنۀ ته ترک د سامان قوم په وساطت راورسېدل او د الپتګين او سبکتګين په برکت سېوا شول. اصلي باشندګان ئې مومند، غوريا خېل او نور اقوام پښتانۀ قبائل وو چې د سبکتګين په لښکر کښې د دولس پښتون ملکانو په ذريعه بهرتي شول او د هند د جے پال، انندپال، د سومنات (ګجرات) او د هند نور علاقو ته په فتوحات ورسېدل. او د شهاب الدين محمد سام په برکت په هندوستان کښې اولنۍ اسلامي حکومت قائم شو.

د بلخ قديم ساماني حکمران ۹۵۳ء کښې د ټول ماتحت علاقوژبه فارسي اعلان کړه. وروستو د ساکا قبائل يو شاخ پهلوا په ذريعه پهلوي شوه.

سوائے غوریوں کے سب افاغنہ خاندان اپنے آپکو بنی اسرائیل کہتے ہیں[1]۔

د ډاکټر بیلیو د سیاحت مشن افغانستان مطبوعه ۱۸۵۷ء مطابق د افغانانو اصلي نوم پښتون دے ځوک وائي دا نوم عبراني دے او ځوک وائي سُرياني دے .چې د ازاد شده قوم په معنٰی دے. ۱۱۵۱ء کښې د غوريانو مضبوط حکومت قائم شو. هیون تسانګ ۶۳۰ء / ۹ هـ پښتانهٔ د پوکین په نامه يادوي[2].

دوه معاصر پوهان مير غلام محمد غبار افغاني او مورخ ګين ستيرن (د ناروے پوهان) دواړه په دې عقيده دي چې د پښتون نوم تر افغان قديمي او اصل دے[3].

د هيروډوتس پکهتويس، پکتيکا، پکهت او د ويدي کتابونو مطابق پکتاس ده .د بطليموس پکتين، د رګ ويدا، پکهت د اوستا پکتي هم شکلي نومونه دي .د پټې خزانې مؤلف د تاريخ سوري په حواله ليکلي دي چې د سام او سُور کورنی پيړو په پيړو په غور، بالشتان او بُست کښې حکمراني کوله[4].

شنسب :- که ایشاں را شنسبیان خوانند به نسبت پدری که بعد از فضل فرزندان ضحاک در غور بزرگ شد۔ و غالب ظن آنست۔ که در خلافت امیر المؤمنین علیؓ بر دست علیؓ ایمان آورد۔

د فتوح البلدان بيان دے چې:

---

1 حیات افغانی، ص ۳۲
2 د امیر کروړ یاد، ص ۵۲۷
3 همدغه اثر، ص ۵۲۹
4 همدغه اثر، ص ۲۹

در عطائے نامہ بہ ماہویہ سوری صراحت دارد۔ ازیں جهت باید دو نامہ بہ دو فرماندہ دادہ شدہ باشد۔ یکے ماہویہ حاکم مرو۔ و دیگرے شنسب از آل غور[1]۔

خپل ذاتي خيال لرم چې د حضرت عثمان رض له اړخه ماهويه سوري د مرو حكمران مقرر شو ـ نو د دغه خاندان يو مشر شنسب چې د غور په علاقه حكمران وۀ ـ د حضرت علي رض په حضور كښې حاضر شو ـ اسلام ئې قبول كړو ـ او د حضرت علي په سفارش د حضرت عثمان رض د خلافت دوران ۳۰ هـ كښې د غور اسلامي حكمران تسليم شو ـ د شنسب د ترۀ زوے شيث هم اسلام قبول كړو ـ خو د دواړو ترۀ زامنو تر مېنځ د تربګنۍ او تربوروليٰ اور په زړونو كښې په غرغندو وۀ ـ د شنسب د وفات نه وروستو اغراق بادشاه شو چې اغراق وفات شو نو غريق بادشاه شو ـ خو د اغراق او غريق تر مېنځ د جنګ و جدل اور بل شو ـ د راجه جے پال په سلطنت كښې لكه د لوديانو نور پښتانۀ هم اباد وو ـ اغراق د پېښور په لور را روان شول ـ چې وروستو د دې ځاے نوم سلطان پور شو ـ سلطان پوره د ګړهي قمردين او موضع اچهر علاقه وه دلازاك بهانه ماني ، ډبګري اور نور ملحقه علاقو كښې مېشتۀ وو ـ د پېښور نه د ملك سيف الدين اغراق په مشرۍ كښې ځلوېښت زره لښكر د جهاد په غرض جلال الدين منكبرتي امداد دپاره غزنه ته اورسېدل او درې وار ئې تاتاريانو ته شكست وركړو ـ د اغراق نه وروستو بهرام حكمران شو ـ د بهرام وروستو د هغۀ د زامنو شيث او

---

[1] د امير كروړ ياد ، ص ۲۰۷

هین تر مېنځ ورانه راغله ـ هین برسراقتدار شو او بیا وزن ، درمېس نهاران او امیر پولاد حاکمان شول ـ د هارون رشید په زمانه د امیر شیث او امیر بنجي نهاران تر مېنځه د حکمرانۍ شخړه هواره شوه ـ امیر بنجي بن خرنک د غور حاکم تسلیم شو ـ ملک خان حاکم هرات د امیر بنجي پلار خرنک قتل کړو ـ

د مختصر تواریخي شجره زما د ناقص خیال پېداوار دے پکار ده چې راتلونکي مومند مؤرخین ورته د لوئې مطالعې په رڼا کښې صحیح ترتیب ورکړي ـ دغسې د خلیل او داؤدزي شجره النساب د مخزن افغاني خودنوشته افسانوي او بې سروپا داستان دے ـ داؤدزي د غوري قبائل سره تړون اشتباه او تشکیک لري او دا غلطه سهوه درستګي غواړي ـ

د اول هجري په زمانه عربو خراسان قبضه کړے وۀ ـ ماورالنهر په آمو دریاب قابض وو ـ د طبري د ۶۶۸ء/ ۴۷هـ ماورالنهر Transoxiana د لیک مطابق : هم دغه کال زیاد بن ابیه د خراسان حاکمیت حُکم بن العمرالغفاري ته حواله کړو ـ هغۀ د کوهستان غور علاقه قبضه او تابع کړه ـ ددۀ دا حمله د هرات یا مرو له اړخه وه ـ

۷۲۵ء/ ۱۰۷هـ کښې ابو منذر اسد بن عبدالله اول غرجستان قبضه کړو او دغلته ئې اسلام خور کړو ـ او بیا ئې غور ، د هرات غرونه ، د غرجستان جنوبي علاقه قبضه کړه ـ

امیر فولاد غوری شنسبی از فرزندان ملک شنسب بن خرنک بود ـ و در حدود ۷۴۸ء/۱۳۰ھ در نواحی کوهستانغور حکومت میکرد ـ

د امیر فولاد د قتل نه وروستو: امیر کروړ جهان پهلوان که پسرو جانشین امیر فولاد بوده است. د امیر کروړ ذکر نور کتابونو کښې نشته. البته شیخ کته متي زي غوریا خېل پخپل کتاب "لرغوني پښتانهٔ" کښې داسې راوړي چې ما "تاریخ سوري" پخپلو سترګو په بالشتان کښې لیدلے وهٔ. هغه لیکي:

تاریخ سوری اورده اند۔ که امیر کروړ ولد امیر پولاد بود۔ که در سال ۱۳۹/۷۵۶ھ در غور امیر شد۔ وو ے راجهان پهلوان ے گفتند۔

پته خزانه د غوري سوري متعلق لوے معلومات لري. ولې دلته په کوزه پښتونخوا کښې ځیني عالمان دا کتاب نهٔ تسلیموي. والله اعلم بالحقیقة.

د خراسان تخت چې سلطان سبکتګین د سامانیانو نه قبضه کړو. نو د باختر (یوناني) په ځاے ئې یو نوے ښار بلخ اباد کړو. دې نه اګاهو دا ښار لهراسپ اباد کړے وهٔ. بیا ئې غزنه فتح کړه. دلته زیات اکثریت د مومند قوم اباد وهٔ. مومند دغه زمانه غور غزنه نه علاوه بامیان کښې هم اباد وو. تُرک نژاد محمود د دولت په طاقت حکمران وهٔ ولې اصل رعیت مومند وهٔ. محمود غزنوي سره ددې قوم اعلیٰ او قابل انسان مشیرِ خاص حسن خان مهمندي وهٔ. د پښتو ژبې د حروف تهجي جوړولو فخر هم یو مومند ته حاصل دے چې ددهٔ خوږ نوم حسن خان مېمندي (مهمند) وهٔ. او ددې ژبې د یو مستند لغات "د پښتو سیند" د تالیف فخر هم

ددې نامتو قوم يو فرد (محمد ګل مومند دوېزي کابل) ته خدا ے تعالٰی په برخه کړو[1].

د طبقاتِ ناصري ليکونکے قاضي منهاج سراج چې د غوريانو د دربار مؤرخ وۀ ـ د امير کروړ ذکر نۀ کوي ـ ښکاره ده چې دا نوم د پټه خزانه د مؤلف محمد هوتک يا عبدالحئ حبيبي د ذهن اختراع ده ـ

د پښتو سيند (قاموسِ افغاني) نه علاوه د محمد ګل مومند يوه کتابچه ''لنډه کې پښتو او پښتونواله'' هم د اهميت وړ کتاب دے ـ د محمد ګل د سکونت ځاے لکه چې هم هغه وۀ چې بابر ئې پخپل تزکِ بابري کښې ذکر کوي ـ

د حدود العالم ازمينورسکي د غور جغرافيائي حدود

شمالاً: رباط کروان او ګوزګان

شرقاً: باميان او غزني

جنوباً: زميندا‌ور او فراه

غرباً: غرجستان او هرات

غور د يو داسې غرنۍ سيمې په توګه د افغانستان په مېنځنۍ برخه کښې پروت دے چې د تګ او راتګ دپاره ستونزې لري ـ او د بهرني يرغلګرو دپاره ددې ځاے نيول ګران وو ـ

په ۱۹۷۲ء کښې زۀ د کابل نه غزني پلۀ لاړ وم ـ د لوړو ټيټو د متينې خاورو ډېکو تر مېنځ سړک وۀ ـ ابادي نۀ وه ـ البته د غزني علاقه سرسبز و شاداب وه ـ دلته د بهلول دانا مزار دے ـ د سړک

[1] ''پښتون'' اُتمانزئ، ۲۱ فروري ۱۹۳۹ء، ص ۱۲

غاړې ته ستني منارونو شکل موجود وو او ورڅخه جوخت د محمود غزنوي مزار وۀ چې د ختمو راهسې جوړ وۀ ـ د مزار خوا کښې د سېوانو (سيب) باغات وو ـ د ګرمۍ موسم وۀ ـ خو غزنه پُرفضا مقام وۀ ـ

د حبيب السير تاريخ مطابق د سلطان محمود غزني اولنے وزير ابو العباس فضل بن احمد وۀ ـ خو هغه په عربۍ ژبه نۀ پوهېدو نو د هغۀ په ځائے خواجه احمد مېمندي مقرر شو ـ احمد بن حسن مېمندي د سلطان د سبق ملګرے وۀ ـ د دۀ پلار حسن مېمندي د سبکتګين په زمانه د بُست حاکم وۀ ـ د ځينو اميرانو په چغلۍ او سازش احمد بن حسن محمود غزنه دے د کالنجر په قلعه کښې قيد کړو ـ د محمود غزنه د وفات نه پس سلطان مسعود د خپل بادشاهت په دوېم کال دے ازاد کړو ـ خو ۱۰۴۵ء/ ۴۲۴هـ کښې وفات شو ـ بيا د مومند د کورنۍ خواجه ابوالفتح عبدالرزاق بن احمد بن حسن مومندي په ۱۰۵۱ء/ ۴۳۲هـ کښې مقرر شو ـ په ۱۰۵۹ء/ ۴۳۸هـ کښې امير مودود د غور حاکم ياتګين مقرر کړو ـ چې دے غور ته نژدې ورغلو نو د هچے غوري زوے او ابوعلي ئې ګرفتار کړل او غزنه ته ئې بوتلل ـ

وائي چې د سلطان مودود د زمانې نه غور د غزني د حکومت يوه صوبه وه ـ د بهرام شاه په زمانه کښې قطب الدين محمد غوري سوري ملک الجبال غور کښې حاکم وۀ ـ بهرام شاه غزني ته راوغوښتو او بلاوجه ئې قتل کړو ـ

سیف الدین سوري چې د قطب الدین د شهادت نه خبر شو هغهٔ د بدل اخستو په غرض په شاه غزنه بهرام شاه حمله وکړه - خو بهرام شاه هندوستان پلو فرار شو - د ژمي په موسم د غزنویانو په امداد بیرته راغلو - د دواړو ډلو د جنګ دوران سیف الدین سوري ګرفتار شو - بهرام شاه هغهٔ له مخ تور کړو - او په یو مانده غوائي ئې سور په ټول ښار کښې وګرځولو - لویو وړو، ښځو نارینهٔ و وریوري مسخرې او کنځل کول او بیا ئې قتل کړو - د سیف الدین سوري د بې عزتۍ د مرګ نه چې علاؤ الدین خبر شو - تاؤ نه ډک جواب ئې ورولیږلو چې بادشاهان جنګونه کوي - یو بل وژني خو داسې شرمول نه کوي - بهرام شاه هندوستان ته فرار شو - او ډیر زر مړ شو - علاؤ الدین غزني ښار ته اور ورته کړو - غزنې ئې تباه کړو - او ۵۹۸هـ کښې محمد غوري چې لاهور فتح کړو نو خسرو ملک ئې ګرفتار کړو او د سبکتګین د خاندان نام و نشان ئې ختم کړو - د خسرو ملک نوم ختم الملوک او د علاؤ الدین جهان سوز شو -

# سامان

د سمرقند خوا کښې یوه علاقه وه ـ د دغه ځاے یو مالدار مشر سامان وۀ ـ د ساماني خاندان د لس بادشاهانو زمانه ۸۷۴ء تا ۹۹۹ء وه ـ چې وروستو د دوي په سلطنت د ترکستان ایلک خاني او غزنویان قابض شول ـ د عبدالملک بن نوح په زمانه ۹۶۱ء کښې الپتګین ته د سالارِاعظم عهده په غاړه شوه ـ خو وروستو ئې منصور بن نوح سره مخالفت پېدا شو ـ غزني ته فرار شو ـ خو هلته ۹۶۳ء کښې وفات شو ـ ۹۷۷ء کښې سبکتګین جانشین شو ـ نوح بن منصور ساماني امیر سبکتګین او د هغۀ زوے امیر محمود ته د نېشاپور حکومت حواله کړو ـ سبکتګین ۹۹۷ء کښې وفات شو ـ د پلار د وفات نه پس اسماعیل یو ناکام حکمران وۀ ـ د هغۀ په ځاے تُرک نژاد امیر محمود د غزنه حکمران شو ـ

سبکتګین د تخت نشینئ دوه کاله پس ۹۷۹ء کښې د هند د فتوحات مخه وکړه ـ د پېښور د شاه کس په علاقه ئې د راجه جے پال یو لوے لښکر ته شکست ورکړو ـ لغمان او ننګرهار هم دې تُرک نژاد غلام قبضه کړل ـ ډېر پښتانۀ چې اګاهو نه د کُفر په مذهب دلته اباد وو ـ مسلمانان شول او د غور و غزنه باشندګان هم اباد شول ـ

۹۹۱ء وۀ چې د هند راجه جے پال د هندوستان د مختلف راجواړو په امداد د سبکتګین نه د بدل په غرض پېښور محاصره کړو ـ خو دوباره ئې شکست وخوړو ـ او حکومت ئې صرف هند پورې محدود شو ؛ د راجه جے پال حکومت لاهور نه لغمان او کشمیر نه تر ملتانه خور پروت وۀ ـ

راجه جے پال دوهم خل شکست نه وروستو سوچ و فکر او فراست نه کار واخستو ـ ۹۹۳ء کښې ئې د ملتان حاکم او هندوستان کښې د پښتون تمدن او کلچر باني شیخ حمید لودهي معزز کړو ـ د هغۀ په وفات د هغۀ ورارۀ د پښتو ژبې شاعر شیخ رضي لودهي او ۹۹۹ء کښې نصر بن حمید لودهي ۱۰۰۴ء کښې ابوالفتح داؤد بن نصر بن شیخ لودهي د ملتان حاکمان وو ـ ۱۰۰۱ء وۀ چې راجه جے پال د امیر محمود نه شکست وخوړو ـ ۱۰۰۸ء کښې د ارجه جے پال زوے انندپال په پېښور حمله وکړه ـ خو شکست ئې وخوړو ـ او د پېښور مکمل علاقه د غزنویانو په قبضه شوه ـ

۹۹۷ء نه تر ۱۰۳۰ء محمود غزنوي د افغانستان نه علاوه د هندوستان ډېر علاقه جات قبضه کړل ـ د هغۀ د وفات وروستو امیر مسعود ، ابراهیم ، بهرام شاه وغیره وو خو اخېر کار غزنه د غور پښتنو مکمل طور قبضه کړه ـ او د سبکتګین او امیر محمود غلام تُرک نژاد نسل شاهانه ټاټ باټ بېخي ختم شو او غوریان د شان و شوکت خاوندان شول ـ

# محمود غزنوي

محمود غزنوي چې د غزنه بادشاه شو ـ نو هغهٔ خپله ټوله توجه د هند تسخير ته ورکړه ـ ځکه چې خلقو سره بې انتها دولت وهٔ هغهٔ د هند په زمکه اوولس ځل تاخت و تاراج وکړو ـ د مندرونو دولت او سرهٔ زر ئې لوټ تالان کړل ـ عن چې د ګجرات سومنات د سرو زرو دروازه او نور دولت ئې قبضه کړو ـ او غزني ته ئې راورسوهٔ ـ د دولت يو لويه برخه ئې خپل هَم قام تُرک نژاد کښې تقسيم کړه ـ محمود نسلاً د غزني نهٔ وهٔ بلکې د الپتګين زرخريد غلام سبکتګين زوے وهٔ ـ د غزنه اصل باشندګان هم خصوصاً مومند پښتانهٔ وو ـ زهٔ په خپل ذاتي خرڅ غزنه ته تللے يم ـ د هغوي مزار په لويه شاهراه واقع دے ـ خو د بدقسمتۍ نه غور پلوٗ لاړ نهٔ شوم ـ

محمود غزنوي غوښتل چې زما په شان کښې څوک بهترينه قصيده وليکي او وعده ئې وکړه چې داسې شاعر ته به زهٔ د يو شعر په عوض اشرفۍ بخشيش کوٗم ـ فردوسي د هغهٔ په شان کښې د لس زره اشعارو قصيده تحرير کړه ـ خو محمود غزنوي د دومره لوے رقم ادائيګۍ نه انکار وکړو ـ

بل جانب چې د ضحاک بادشاه نسل په غور کښې د زبردست قوت مالکان شول نو ملک الکلام مولانا فخرالدين

مبارک شاه مروزي د غور د نامور سلاطين په شان کښې د نظم په ژبه نسب نامه بِلا لالچ تحرير کړه . چې ابتداء ئې د الضحاک نه وه . او د ضحاک و شنسب حالات ئې پشت په پشت وليکل . د طبقات ناصري مؤلف منهاج سراج وائي چې ما دغه کتاب د ملکۀ جهان د حرم محترم ابوالفتح محمد بن سام د لُور په محل کښې پخپلو سترګو ليدلے او لوستے وۀ . ملک الکلام فخر الدين مبارک شاه دا نسب نامه سلطان علاء الدين جهان سوز دپاره تياره کړې وه . وائي چې هغۀ دغه نظم نامه او د تواريخ ډېره برخه تياره کړه نو د هغۀ په مزاج کښې تغير راغلو او دغه نسب نامه د نظم په ژبه مکمل تياره نۀ شوه خو وروستو ئې سلطان شهاب الدين محمد سام (محمد غوري) دپاره مکمل کړه .

مبارک شاه وائي چې د سام و سُور د نسل دا حکمرانان نسبِ شنسباني بللے شي . غالب ګمان دادے چې شنسب د حضرت عليؓ په لاس بيعت کړے وۀ او دا بيعت د خليفه حضرت عثمانؓ په زمانه ۳۹ھ کښې واقع شوے وۀ .

---

# غوریان څخیان څوک وو؟

د غور د پښتنو تاریخ ډېر پخوانی او زوړ دی. د پښتو ژبې سره سم ددې قوم ابتداء ده. معلومېږي چې ضحاک او سام و سور نه پس د دوي حکمراني په ډېر ځایه قائم پاتې شوې ده. د ډېرو قامونو ژوند د کوچیانو هسې وه. خو چې کله د کوچي قبیلې د پښتون قوم سره واسطه شوې ده. دوي د حکمران طبقې ژبه د خپل ضرورت مطابق خپله کړې ده چې وروستو د پښتون قبیلوي ډلې شناخت ئې خپل کړے دے او دغسې په ډېر مختلف پښتون نومونو یاد شوي دي. دغه وجه ده چې وروستو د دوي تعین او یو قوم سره جوړښت مسائل رابرخېره کړي دي. چې نعمت الله هروي د نامعلوم کتاب یا شجرات غېر شعوري طور بیان کړي دي او د هغه کتاب نوم نۀ ښکاره کوي چې د کوم کتاب نه دغه شجرات ماخوذ دي. او د شنسب یا ضحاک نه وروستو ئې د مخزن افغاني په نوم یو خودساخته قیصه د قېس عبدالرشید په نوم بیان کړې ده چې د نورو قبیلو نمائندګي وشي.

دې کښې شک نشته چې غوریان د افغانستان د غور په مناسبت دي چې د غور د محل وقوع په لحاظ ئې ضحاک نه تر بسطام، شنسب او بنجي نهاران، سوري، سام حکومتونو خپله ژبه او شناخت برقرار ساتلے دے.

شخے خان لـه خپـل شـناخت پـهچـان لـري چې د سـاکا پـه مناسبت د ے او سیسـتـان ، سـوات کښې پښـتنو سـره د وسېدو پـه سبب ئې پښتـو ژبـه اختيـار کړه - د سـاک دره (چکدره) پـه مرکز د دواړو قبيلو تجارتي مرکز کښې شخي پښتو ژبه اختيار کړه او دلاژاک نـه وروسـتو اسـپازي يـا اسـپي د يـو لـوے فراخـه علاقـې مالكان شول - د مغل پـه دغه پُراشوبه زمانـه غوريـان د پېښـور نـه تـر اټکه خپلو زمكو نه محروم شول -

دغسې د پښتون ځينې نور قبائل واخلئ چې آيا دوي اصلاً پښـتانـۀ وو يـا د وخـت مطـابق مجبـور وو - چې خپـل مخصـوص مفادات دپاره پښتو زده کړي او نن ځان ته پښتانۀ وائي -

# امیر فولاد غوري

امیر فولاد غوري د ملک شنسب بن خرنک زوی وه او د غور غرئیزه علاقه ددهٔ په تصرف کښې وه چې د خرنک د قتل نه وروستو هغه وخت ورحواله شوه چې ملک خان هراتي یعني ملک امیر حاجب خرنک قتل کړو.

د حضرت علي رض دور حکومت ۶۵۶ء تا ۶۶۱ء وه چې بیا وروستو د بني امیه حکومت ۶۶۱ء ــ ۷۵۰ء وه. یعني یو کم نوي ۸۹ کاله.

وروستو ۷۵۰ء کښې بن عباس اقتدار کښې راغلل. اولنے بادشاه ابوالعاس ۷۵۰ء تا ۷۵۴ء وه. ددهٔ د وفات نه پس د هغهٔ ورور جعفر المنصور ۷۵۴ء تا ۷۷۵ء بادشاه شو. د ابوالمنصور په تخت نشیني د هغهٔ ترهٔ عبدالله بن علي د شام گورنر بغاوت وکړو. ابو مسلم خراساني ددغه بغاوت اختتام دپاره مقرر شو. عبدالله بن علي شکست وخوړو او فرار شو. چې وروستو قتل شو. ابوالمنصور د ابو مسلم خراساني گورنر خراسان د طاقت نه په ویره وهٔ. هغه ئې د یو سازش تحت قتل کړو او د انعام د مراعات په ځاے ئې د هغهٔ په قتل کښې عافیت ولیدو. د ابو مسلم د پیدائش کال ۷۲۰ء وهٔ. د شهادت کال ئې ۷۵۴ء وهٔ. یعني د ځلور دېرش کاله په عمر کښې شهید شو. د جعفر المنصور د وفات ۷۷۵ء نه

پس د هغۀ زوے مهدي او بيا هارون الرشيد ۷۸۲ء تا ۸۰۹ء بادشاه وۀ۔

د ابو مسلم مرستيال امير فولاد د بني اميه اخېري حکمران مروان دوم ۷۴۴ء تا ۷۵۰ء په زمانه دوه کاله وړاندې ۷۴۸ء کښې په حق رسېدلے وۀ۔

د هارون الرشيد د عهد لويه کارنامه ۷۶۲ء کښې د بغداد تعمير وۀ چې وروستو د بنو عباس د حکومت مرکز او پايه تخت شو.

امير فولاد غوري د ملک شنسب بن خرنک ځوانمرد زوے وۀ ۔د غور د کوهستان اطراف دده په قبضه وو ۔دۀ د ابو مسلم خراساني په ملګرتيا د بني اميه خلاف تحريک ته دوام ورکړو ۔د امير فولاد ۷۴۸ء کښې په وفات د خراسان حکومت دده د وريرونو په لاس شو ۔چې اخېر کار د حکمرانۍ دور امير بنجي بن نهاران ته حواله شو ۔بنجي نهاران عظيم القدر حکمران وۀ ۔نسب نامه ئې دا شکل وه ۔

امير بنجي بن نهاران بن درمېس بن وزن بن هين بن بهرام بن حجس بن حسن بن ابراهيم بن معتدل بن باسد بن سداد بن ضحاک[1] ۔

صفا ښکاري چې دا شجره نسب نامکمل ده ۔او د ډېرو پُشتونو حاجت لري۔

[1] طبقات ناصري ، ص ۵۸

# شنسب

د عربي ژبې آل سنسب Al-e-Sansab او د فارسي ژبې
سنسبان Sansaban

د شنسب د کورنۍ اولنی حکمران امیر بنجي نهاران وۀ چې د بنو عباس امیرالمؤمنین هارون الرشید عهد خلافت دروان ۷۸۶ء تا ۸۰۹ء بغداد ته ورغلو ـ د بغداد د تګ مقصد دا وۀ چې غور کښې یوه قبیله "شیشان" وه ـ د هغوي دعویٰ وه چې زمونږ پلار اولنی سړے وۀ چې اسلام ئې قبول کړو او شنسباني د هغۀ نه پس مسلمان شو ـ د امیر بنجي په زمانه د شیشیانو د قبیلې یو سړے شیث بن بهرام وۀ ـ د امیر شیث بن بهرام او امیر بنجي مابین د غور په حکمرانۍ تنازعه پیدا شوه ـ اهل غور د تفرقې اختتام دپاره دواړه فریقو ته صلاح ورکړه چې دواړه ډلې دې دا قضیه د هارون الرشید په مشرۍ کښې فیصله کړي ـ

## د یو یهودي خدمت ګزاري

ددغه یهودي امیر بنجي څخه تعلقات وو ـ هغه د حکمران طبقې د اداب ِ دربار او مراتب نه بنۀ واقف وۀ ـ د یهودي یو شرط وۀ چې امیر بنجي کامیاب شو ـ نو هغه به د یهودیانو په نقل و حرکت

غور کښې پابندي نهٔ لګوي او هر ځاے به ورته د وسېدو اجازت وي.امير بنجي د هغه شرائط تسليم کړل.او امير بنجي ئې د دربار د طور طريقو نه واقف کړو.خو شيث بن بهرام واقف نهٔ وهٔ.د هارون الرشيد دربار ته چې دواړه حريف ورسېدل .نو شيث هغه لباس کښې ملبوس وهٔ چې د عام غوريانو وهٔ او د امير بنجي لباس د اميرانو سردارانو وهٔ.هارون رشيدته چې دواړه پېش شول نو امير بنجي هر لحاظ مهذب وهٔ.هغه د غور حکمران مقرر شو او د لښکر سپه سالاري شيث بن بهرام ته حواله شوه .مثلاً مؤيدالدين فتح کرماخ، ابو العباس شيث ، سليمان شيث شيثيانيان وو .د امير بنجي نه امير سوري بن محمد تر وخت د تاتاريانو د بربريت په سبب مفصل معلومات معلوم نهٔ دي.

د امير بنجي او امير شيث د شجره نسب تفاوت ملاحظه کړئ.

- امير بنجي بن نهاران بن درمېس بن وزن بن اين بن بهرام
- امير شيث بن بهرام

غور د افغانستان مرکزي ولايت دے.

# سوري حکومت

## امیر سوري

د غـور زیاتـه علاقـه د امیـر سـوري تحت وه ـ د غـه وخت دالشتان بالاو زیـرین خلق مسـلمانان نهٔ وو او د اهل اسلام او اهل شرک مابین جنګ روان وۀ ـ صفاریان نیمروز نه د بُست و زمینداور اراده وکړه یعقوب لیث د تګین اباد (بلاد رُخج) امیر لک لک خلاف حمله وکړه ـ غور د دنګو غرونو په سبب بچ وۀ ـ دغه زمانه د مندېش سردار امیر سوري شنسباني وۀ چې د ۸۲۸ء/ ۲۵۳هـ خواؤ شا امیر وۀ ـ

د یعقوب لیث د تګین اباد (بلاد رخج) سره د جنګ دوران د غوریانو ځینې کسان د سندهـ سرحد تـه ورسېدل ـ دغلته دوي بچ پاتې شول ـ خو دغه دوران د اهل اسلام او اهل شرک مابین جنګ روان وۀ ـ او دغه جنګ د یو بل کلي تر مینځ وۀ ـ خو غورته ددغه جنګونو اثرات راتلل ناممکن وو ځکه چې دغه علاقه د خپل لوړ دنګ غرونو په سبب بچ وه ـ د امیر سوري ۸۷۴ء/ ۲۵۳هـ او امیر محمد بن سوري ۱۰۱۰ء/ ۴۰۱هـ تر مینځ د یو یا دوه بادشاهانو موجودګۍ خلاء موجود ده چې ۱۳۲ کاله فرق جوړېږي ـ

# د غور لوړ دنګ غرونه

1. زار مرغ :- زار په معنٰی د ځاے او مرغ په معنٰی د مېدان ـ د مندېش دنګ غر ـ چې د شنسبيانو مرغۍ نه راغلي يُو مطلب دا چې مونږ د غور د مېدانونو نه دلته پېښور ته راغلي يُو ـ پټه خزانه د غوره مرغۍ تعين د کسي غر خوا کښې کوي ـ او دغسې تاريخ سوري او پټه خزانه يا مخزنِ افغاني د يو بل برعکس کتابونه دي ـ
2. سُرخ غر :- دا غر هم مندېش کښې دے ـ ددې غر سرهٔ کاني اوس اوس د پښتو د يو چينل په ذريعه عوام ته ښودلے شوي وو ـ
3. اشک :- علاقه تمران کښې دے ـ د تمران ابادي ددې غر خوا کښې ده ـ
4. ورني :- د زميندا‌ور ، والشت او قصرِ کجوران ابادي ددې غر په وادۍ او اطراف کښې ده ـ
5. کوه روئين :- يا فج خېسار ـ ددې غر لمبائي ، اونچائي ډېره زياته ده چې د انسان د وهم او ګمان نه لوړ دنګ غر دے ـ

# ملک محمد سوري

۱۰۱۰ء / ۴۰۱ھ

د ابوالحسن هیصم بیان دے چې د خراسان او زابلستان حاکمیت د صفاریانو او سامانیانو نه امیر سبکتګین ته منتقل شو ـ هغه څو وار بُست نه د غور په غرئیزه سیمه حمله آور شو ـ زبردست خون ریزي وشوه ـ د تخت غزنه مالک امیر محمود بن سبکتګین شو ـ نو د غور امیر محمد بن سوري شو ـ محمود ته ئې خراج بند کړو ـ او پټ په پټه د قلعه ګانو استحکام ، جنګي ساز و سامان او د علاقې مضبوطیه کښې اخته وو ـ د محمود په زړهٔ کښې هم ویره وه او د لوړ دنګو غرونو د پناه ګاه نه ئې اندېښنه وه ـ هغه یو لوے لښکر سره په غور ۱۰۱۰ء/۴۰۱ھ حمله آور شو ـ محمد بن سوري په قلعه آهنګران کښې محصور شو ـ محصوري کافي وخت واخستو ـ دې دوران زبردست جنګونه وشول ـ او زبردسته وینه وبهېده ـ اخېر صلح وشوه ـ محمود غزنوي دٔ محمد بن سوري زوے شیث ځان سره غزنه ته روان کړو ـ محمد بن سوري د خپل ورکوټي زوے شیث (حسن) په هجران کښې وفات شو ـ هغه پښتون وهٔ ـ د زوے د قېد ذلت ئې برداشت نکړو ـ او د دغه غمه په حق اورسېدو ـ د روضات الجنات مطابق محمود غزنوي محمد

سوري قتل کړو ۔امیر محمود ته هم احساس وشو چې د غور حکمراني څۀ اسان کار نۀ دے ۔ د هغۀ دوه تجربه کار سالاران التون تاش حاجب او ارسلان حاجب د غور په قبضه ناکام ثابت وو۔
علي بن محمد البُستي "د تاریخ سوري" په نوم کتاب اولیکلو ۔چې ضحاک نه تر سوریانو بادشاهانو تر وخت شجرات او واقعات پکښې درج وو ۔ د امیر محمد سوري په وفات د شیخ اسعد سوري وفات ۴۲۴ھ دا څو شعرونه وګورئ۔

پر سوریو باندې ویر پرېوت لـه پاسه
محمد واکمن چې ولاړے په بل دار
د محمود د ژوبلو رو په لاس کښېوت
چې غزنـه ته ئې بـائلے په تلوار
په دې ویر د غور وګړي تور غري شول
په دې ویر رنا تیارۀ شوله د ښار
نۀ لر غرچه بیا راځي کاروان د مشکو
نه را دروميي غور ته بیا جوپې د شار
دا په څۀ چې "محمد" ولاړ له نړیه
په ویر نه ئې سو غور ټول سوګوار
نۀ ښکارېږي هغه سور د سور په لتو
نۀ ځلیږي هغه لمر بر دې دیار
هغه غور په ویر ناتار د واکمن کښېوت
هغه غور سر د جاندم غوندې سوراړ

لاس دې مات اے فلکه چې دې وکا
محمد غونډې زمرے د مړينې ښکار
سخ په تا اے محمده د غور لمروې
په نړۍ به نۀ وي ستا د عدل سار
کۀ سوري دې په تګ وير کاندي و برمن شول
هم به وياړي ستا په نوم ستا په تبار

پټه خزانه ، ص ۴۲

## ملک ابو علي بن محمد سوري

### ۱۰۱۱ء تا ۱۰۳۵ء

د محمد بن سوري حاکم غور و جبال منديش دوفات نه پس د هغۀ زوے ابو علي د غور و منديش حکمران شو۔ هغه يو عادل بادشاه وۀ ۔ د هغۀ ورور شيث بن محمد د غزنوي محمود د قبضه ازاد شو او دواړه ورونو په خوشالۍ ژوند تېرولو ۔ د امير محمود د مرګ نه پس د هغۀ زوے مسعود د غزنه بادشاه شو ۔ د هغۀ برعکس د امير شيث زوے عباس د خپل ترۀ ابو علي خلاف بغاوت وکړو۔ هغۀ ابو علي ګرفتار کړو او په خپله د غور بادشاه شو.



# ملک الامیر عباس بن شیث ( شیش )

## ۱۰۳۵ء تا ۱۰۶۰ء

امیر عباس ډېر بهادر غوري حکمران وۀ ۔هغه یو ښۀ منتظم خو سخت ګیر او ظالم وۀ۔ هغه اووۀ کاله د غور بادشاه وۀ۔ وائي چې دۀ دوه د ښۀ نسل سپي ساتلي وو ۔چې یو ته ئې ''ابراهیم غزنه'' او دویم ''عباس غزنه'' یعني پخپل نوم وو ۔روزانه ئې دواړه سپي خپلو کښې جنګول۔ د هغۀ همنام سپے به چې غالب شو نو د یو زبردست جشن انعقاد به وشو او چې کله به ابراهیم غزنه کامیاب شو نو هغه وخت به د هغۀ د غیظ و غضب نه څوک هم محفوظ نۀ وو۔

د امیر عباس د حکومت دوران د غور په علاقه قلعه جات او بې شماره محلونه تعمیر شول ۔خو رعایا د هغۀ د بربریت نه پرېشان وو او بار بار ئې د غزنه حکمران ۱۰۵۹ء تا ۱۰۹۹ء ته به غور د حملې دعوت ورکوۀ ۔ابراهیم په غور حمله اوکړه او د غور لښکر د غزنه امیر پلۀ واوړېدو۔ امیر عباس ګرفتار شو۔ غزنه ته ګرفتار لاړو او په غور کښې د هغۀ زوے د امیر عباس په ځاے امیر محمد حکمران شو۔ د دې جنګ اصلي سن معلوم نۀ دے۔

# امیر محمد بن عباس سوري

۱۰۶۰ء تا ۱۰۸۰ء

سلطان ابراهیم چې امیر عباس گرفتار کړو او غزني ته ئې بوتلو ۔او د هغهٔ په ځاے ئې د هغهٔ زوے امیر محمد سوري حکمران تسلیم کړو ۔ هغه یو عادل او د پاکیزه اخلاق خاوند وهٔ ۔د هغهٔ د غزنه حاکمانو سره تعلقات ډېر ښهٔ وو ۔ هغوي ته ئې خراج باقاعده ادا کوؤ ۔ د امیر محمد بن عباس د وفات وروستو قطب الدین حسن بادشاه شو ۔ یاد ساتئ چې دا امیر محمد سوري د هغه امیر محمد سوري نه جدا بادشاه دے چې امیر محمود غزنه سره د جنگ دوران گرفتار شو ۔او وروستو د زهرو په خوراک وفات شو ۔

## ملک قطب الدین بن حسن بن محمد بن عباس

۱۰۸۰ء تا ۱۱۰۰ء

ملک قطب الدین حسن بن محمد بن عباس بن شنسب بن محمد بن محمد بن سوري بن امیر بنجي نهاران بن امیر پولاد بن شنسب (دا یو ناقص شجره نسب دے ۔)

ملک قطب الدین حسن یو سخت مزاج انسان وۀ ـ ددۀ په زمانه د غور په سیمه زبردسته خونریزي او فساد روان وۀ ـ ددې سلطان په عهد یو خل تګاب (علاقه و جیرستان) وسېدونکو بغاوت وکړو ـ قطب الدین فوراً هلته ورسېدو ـ د جنګ دوران یو غشې ددۀ په سترګو ولګېدو او ۱۱۰۰ء/۴۴۹هـ کښې شهید شو ـ ددۀ لښکر په داسې جذبه وجنګېدو چې بغاوت ئې ختم کړو ـ د سلاطین غور د اخري زمانې پورې او د شنسبي د سلطنت بربادۍ پورې دغلته د اباد کارۍ اجازت نۀ وۀ ـ صرف د امیر خرنک اولاد ته استثنٰی حاصل وه ـ چې دغه مقام ځخه جخت وسېدو او دغه علاقه د امیر موصوف خرنک فرمانبردار وه ـ د قطب الدین حسن د وفات نه پس د هغۀ زوے عزالدین حسین ۱۱۰۰ء / ۴۴۹هـ مسند نشین شو ـ

## د ملک عزالدین حسین بن قطب الدین حسن اولاد

| | | |
|---|---|---|
| 1. | ملک شهاب الدین محمد | رئیس مادین غور |
| 2. | ملک فخرالدین مسعود | امیربامیان و طخارستان |
| 3. | سلطان علاءالدین حسین | امیرغزنه ، غور، بامیان |
| 4. | سلطان سیف الدین سوري | امیر غور و غزنه |
| 5. | سلطان بهاء الدین سام | امیر غور |
| 6. | ملک الجبال قطب الدین | امیر غور او فېروز کوه |
| 7. | ملک شجاع الدین | امیر خراسان و غور |

# ابو السلاطين ملک عزالدين حسين

## ۱۱۰۰ء تا ۱۱۴۶ء

ملک عزالدين حسين بن ملک قطب الدين حسن ښکلے او
د پاکيزه اخلاق مالک وۀ. ددۀ په عهد حکومت د غور کوهستان
همه علاقې ازاد شوې. الله پاک د اووۀ زامنو پلار نصيب کړو. ددۀ
ځلور زامن د سلطانۍ او جهان دارۍ په منصب سرفراز کړل.
عزالدين سنجر او سلجوقيانو د سلطنت سره مستحکم ربط و تعلق
وۀ. هغۀ سلطان سنجر سلجوق ته هر کال اسلحه لېږله. عزالدين
غور نه سلطان سنجر ته بهترين قسم سپي غور نه استول. د
عزالدين د غزنه سلاطين سره هم ښۀ تعلق او مراسم وو. د غور په
وطن څۀ موده پس هغه وفات شو. مشر زوے فخرالدين مسعود ئې
د باميان حکمران وۀ. عزالدين پخپل ژوند ملک د خپلو زامنو
مېنځ کښې وېش کړے وۀ. د عزالدين د وفات نه وروستو ورسار يا
ورشار د ملک قطب الدين ملک الجبال په قسمت شو. او د
حکومت مرکز ئې هم دغه ورسار وۀ. خو وروستو ئې فيروز کوه د
حکومت مرکز کړو. قلعه او ښار ئې اباد کړو. سلطان سوري د خپل
حکومت مرکز استيه(د غور يو قلعه) کښې وساتۀ. بهاء الدين سام د
خطۀ سنګه حکمران شو او منديش ئې مرکز وۀ. سلطان علاء الدين

جهان سوز د قلعه وجیر بادشاه شو ـ ملک فخرالدین د غور په شمالي برخه واقع (ولایت کښې) حاکم شو.

د ملک الجبال قطب الدین محمد والي فېروز کوه او نورو ورونو تر مېنځ ورانه راغله او ملک الجبال ورونو نه خفا غزنه ته لاړو ـ د غزنه بهرام شاه رویه اول ښـهٔ وه ـ خو وروستو ځینې خود غرض کسانو د هغهٔ په زړهٔ کښې وسوسه پېدا کړه او ملک الجبال قطب الدین ئې په زهرو هلاک کړو او هم غزنه کښې دفن شو ـ د ملک الجبال وفات د سلطان محمود غزنوي خاندان او دودمان شنسبي او آل ضحاک تر مېنځ د نفرت او دشمنۍ سبب شو.

د ملک الجبال د غېر مناسب وفات نه چې سلطان سیف الدین سوري "۱۱۴۲ء تا ۱۱۴۹ء" خبر شو نو د یو لوے لښکر سره په غزنه قابض شو ـ د شنسب نسل اولنے بادشاه وهٔ چې د سلطان په لقب په ورومبي ځل د غزنه بادشاه شو ـ د قطب الدین ایبک نه د سلاطین دهلي اغاز په دغه اساس وهٔ.

# بهاؤالدین سام

## ۱۱۴۹ء / ۵۴۴هـ

ملک الجبال چې غزنه ته منتقل شو ـ نو د فیروز کوه نظام ګډ وډ شو ـ سلطان بهاؤ الدین سام د سنګه نه فیروز کوه ته راغلو. هلته ئې نورې قلعه ګانې تعمیر کړې ـ غرجستان کښې ''شار'' حاکمان وو ـ هغوي سره ئې دوستانه تعلقات استوار کړل او ۱۱۴۹ء کښې د فیروز کوه په مسند کښېناستو ـ دغه کال د سیف الدین سوري د قتل هم دے ـ

د سلطان بهاؤ الدین په حکم غور ، ګرم سیر کښې قصر کجوران ، هرات کښې د کوهستان په علاقه قلعه شورسنګ ، د غرجستان نه غرونو کښې قلعه بندار او د غرجستان او پارس په مېنځ کښې قلعه فیروز تعیر شوې ـ د سلطان سیف الدین سوري د شهادت نه پس بهاؤ الدین سام د غور حکمران شو ـ

سلطان بهاؤ الدین سام ته چې په غزنه کښې د سلطان سیف الدین سوري د تذلیل او شهادت خبر راورسېدو نو د اهل غزنه نه د بدل اخستو په غرض د غزنه په لور را روان شو ـ عن چې نور ورونو څخه د سیف الدین سوري د شهادت په مراسم کښې هم شرکت ونکړو ـ د غور ګرم سیر ، غرجستان وغیره لښکر سره غزني پلؤ را روان شو ـ

یاد ساتل پکار دي چې کوم وخت سېف الدین سوري په غزنه حمله وکړه ـ نو بهرام شاه ۱۱۱۸ء تا ۱۱۵۲ء د غزني نه هند پلؤ فرار شو ـ

سلطان بهاؤ الدین چې ګیلان ته ورسېدو نو په ۱۱۴۹ء / ۵۴۴هـ کښې وفات شو ـ

سلطان سېف الدین سوري چې غزنه پلؤ روانېدو ـ نو هغۀ د غور تخت سلطان بهاؤ الدین ته حواله کړے وۀ ـ سلطان بهاؤ الدین د وفات په وخت ګیلان کښې د غور فرمانروائي سلطان علاؤالدین جهان سوز ته حواله کړې وه ـ سلطان علاؤ الدین سوري چې د بهاؤالدین وفات نه خبر شو نو غزنه پلؤ روان شو ـ

## ملک شهاب الدین محمد

ملک شهاب الدین د غور د مادین حکمران وۀ ـ ددۀ دوه زامن وو ـ ناصر الدین حسېن علاؤ الدین حسېن ـ سلطان علاؤ الدین حسېن چې د سلطان سنجر په خدمت کښې خراسان ته لاړ وۀ او د غور تخت خالي پروت وۀ ـ نو خلقو ناصر الدین حسېن د فېروز کوه په تخت سرفراز کړو ـ د غزني غور د حادثات نه پس دهلي ته لاړو او شمس الدین الشمش سره ملګرے شو او ۱۲۲۳ء / ۶۲۰هـ هم هلته وفات شو ـ

# سلجوق

سلجوق د خراسان حاکم وؤ ـ عجم ، عراق ، خوارزم ، طبرستان ، کرمان ، فارس، سیستان د دوي قبضه کښې راغلل . چغربیګ داؤد د خراسان د مرکزي شاخ اولنے حکمران وؤ ـ ددهٔ د وفات نه پس طغرل بیګ ۱۰۹۷ء تا ۱۱۱۸ء او بیا الپ ارسلان ۱۰۶۳ء تا ۱۰۹۱ء بادشاه شو ـ د الپ ارسلان د حکومت مرکز قاهره وه ـ ددې خاندان اخیري حکمران سلطان احمد سنجر بن ملک شاه وؤ ـ سنجار د شمالي عراق مشهور ښار وؤ ـ د ګرمۍ په موسم بخارا او د یخنۍ په موسم ئې مرو شاهجهان کښې تېرولو ـ د شل کاله عمر کښې بادشاه شو او درې اویا (۷۳کال) په عمر کښې په مرو کښې ۱۱۵۷ء کښې وفات شو ـ د ژوند اخیري ورخو کښې ئې غزو نه شکست وخوړو ـ قېد شو ـ خو یو کال پس ازاد شو .

د طبقات ناصري لیکونکے لیکي " چې د غور سردار او د غرئیزې علاقو بادشاه هم د سلطان سنجر فرمانبردار وؤ ـ ددهٔ په زمانه د غزني او غور حاکمانو تر مینځ سخته دشمني وه ـ دغه جنګ جدل کښې غوریان کامیاب شول ـ د علاؤ الدین د حکمرانۍ په دور غوریانو د سنجر اطاعت پرېښودو ـ د هرات په غرئیزه علاقه د چشت او هرات تر مینځ د "سګوشه ناب" په مقام ۱۱۵۱ء کښې د سنجر او علاؤ الدین مابین زبردست جنګ کښې

علاؤالدین سوري شکست وخوړو. علاؤ الدین ګرفتار شو. خو څو
ورځې پس د قید نه آزاد شو -
''طبقات ناصري ، ص ۴۲۳''

د ګرفتارۍ دوران د سنجر سلجوقي علاؤالدین سوري څخه
تعلقات دومره استوار شول چې د قید نه د خلاصي په موقعه ئې
خپل ټول څاروي د هغهٔ حواله کړل چې چرته زما د څاروو رمه د
ناشکره غزو په لاس رانشي -

د سنجر علاؤ الدین څخه د دوستۍ تعلق ځیني پښتون
دښمن مؤرخین د هغهٔ بې عزتي بولي. خو سنجر عموماً د ګرفتارۍ
دوران هغهٔ ته خپل ورور وئیل -

د سنجر نارینه اولاد نهٔ وهٔ. د هغهٔ غلامانو نوکرانو مختلف
علاقو کښې ازاد حکومتونه قائم کړل. چې د سلجوقیانو په نوم
مشهور وو - ۱۱۵۹ء وهٔ چې د سلجوقیانو مرکزي حکومت او د
غزنویانو مضبوط حکومتونه ختم شول -

# سلطان علاؤالدين

## "جهان سوز"

## ۱۱۴۹ء تا ۱۱۶۱ء

سلطان بهاؤ الدين سام بن حسين غزنه طرف د ملک الجبال او سيف الدين سوري د قتل بدل اخستو په غرض روان وۀ خو هغه د سفر دوران د ګيلان په مقام وفات شو. د هغۀ په ځاے د غور حکمران علاؤ الدين حسين ۱۱۴۹ء / ۵۴۴هـ فيروز کوه په تخت کښېناستو. هغۀ فوراً د غور و غرجستان لښکر راجمع کړو. او غزنه پلؤ روان شو. د غزنه حکمران بهرام شاه چې د علاؤ الدين د راتګ نه خبر شو. نو هغۀ د غزنه او هندوستان سنګر سره د ګرم سېر ښارونو رُخج او تګين اباد په لار زمينداور ته را روان شو. خو علاؤ الدين د هغۀ نه وړاندې دغلته رارسېدلے وۀ. د غزنه او غوري بادشاهانو ترمېنځ دشمني وه. بهرام شاه د غورحکمران علاؤ الدين ته دهمکي اميز پېغام راؤلېږلو. چې غور ته واپس شه. ما څخه ډېر زيات فيل (هاتيان) دي. علاؤ الدين ورته په جواب کښې ووې. " اگر تو فيل لايا ہے۔ تو ميں خر ميل لايا ہوں" تا زما دوه ورونه هلاک کړي دي د هغوي ګناه څۀ وه.

دواړو طرف د جنګ صف بندي وشوه. علاؤ الدين خپل دوه پهلوانان خرميل سام حسين او خرميل سام بنجي راوړاندې

کړل ـ دواړو یو یو هاتي ووژلو ـ غوریان د پېدل جنګ ماهر وو. زبردست جنګ دوران د بهرام شاه زوے دولت شاه لښکر او هاتیانو څخه حمله وکړه ـ غوریانو د دولت شاه لښکر او هاتیان ګېرا کښې واخېستل ـ د دولت شاه هاتیان او لښکر ټول ووژل شول.

د بهرام شاه په شکست ټول لښکر فرار شو ـ دواړه فوځونه د تګین اباد نزدې "جوش آب ګرم" ته راورسېدل ـ دغه ځاے ته اوس "ګرم آب" وائي ـ چې د قندهار شمال مغرب واقع دے ـ دغه مقام هم بهرام شاه شکست وخوړو ـ غزني پلؤ فرار شو ـ خو علاؤ الدین ئې په تعاقب وۀ ـ د بهرام شاه او علاؤ الدین تر مېنځ درېم جنګ غزنه کښې واقع شو خو بیا هم بهرام شاه شکست وخوړو او علاؤالدین د غزني په ښار ۱۱۵۷ء کښې قابض شو ـ اووۀ ورځې شپې غزني په اور کښې غرغره وۀ ـ دغه دوران د وینو سېلابونه بهېدل.

علاؤ الدین د انتقام په تاؤ کښې د محمود غزنوي ، سلطان مسعود او نور بې ګناه حاکمانو نه قطع نظر د نورو قبرونو نه مړي رابهړل کړل او ټول ئې وسوزول ـ د غزنوي بادشاهانو په محلات کښې ئې د عېش و عشرت محفلونه وکړل.

د ملک الجبال او سیف الدین سوري لاشونه ئې تابوتونو کښې ډېر په احترام بند کړل او د هغوي لاشونه ئې غور ته راورسول او غور کښې ئې ښخ کړل ـ هغۀ د اهل غزنه عام باشندګان معاف کړل او اتۀ ورځې پس بُست او زمینداور ته واپس راغلل ـ غور کښې ئې شهید دواړه وروڼه د اسلاف قبرونو خوا کښې خاورو ته وسپارل.

د غزنه سوزول ، د ډېر بې ګناه قتل و غارت ، د غزنه کتب خانې ، درسګاه ، د بُست د هغه محلونو څۀ قصور وۀ ـ چې غزني نه ډېر لرې واقع وو ـ ددې لوے جرم په بناء د هغۀ نوم سره ''جهان سوز'' مشهور شو ـ

بهرام شاه به کینه من چوں کمان کشید

کندم به نیزه از کمرِ او کنانه را

ترجمه :- بهرام شاه ما څخه د دشمنۍ په وجه غشي د لیندې نه وچلول ـ ما هم نېزه پورته کړه ـ او د هغۀ د ملا نه مې ترکش (تېکے) راښکلو ـ

تبصره :- ددې ټول جنګ ذمه وار په اصل کښې بهرام شاه وۀ چې د غوریانو دوه امیران ئې بې ګناه قتل کړل ـ

۱۲۰۱ء کښې د خسرو شاه په قتل د سلطان سبکتګین د اولاد د بادشاهۍ سلسله بېخي ختم شوه ـ او د سام و سور د نسب سلسله د غوریا خېل په شکل اوس هم قائم ده ـ د غوریا خېل د نسل هر خان ددغه قبائل مشر او د سام و سور اولاد دے ـ غوریا خېل چې پېښور قبضه کړو نو د سام سُور نسل مشران د ''خان'' په نوم مشهور شول ـ د تاتاریانو د ''خان'' لقب خاص اعزاز شو ـ اوس هم د غوریا خېل درې قبیلو کښې خان یو اعزازي خطاب دے ـ د مغل، سکهانو او انګرېزانو په زمانه دغه نوم غوریا خېل پښتنو څخه مخصوص وۀ ـ او د کمین ذات جرأت نۀ وۀ چې د خان لقب استعمال کړي ـ خو اوس دا نوم عام مستعمل دے ـ

# علاؤ الدين جهان سوز / سلطان سنجر

## ۱۰۸۶ء تا ۱۱۵۷ء / ۱۱۴۹ء تا ۱۱۶۱ء

د فیروز کوه په مقام د علاؤ الدين تخت نشيني د سلطان سنجر څخه د دشمنۍ باعث شوه او سلجوقي حکمران سنجر ته ئې باج و خراج بند کړو ۔ دغه وجه وه چې سلطان سنجر د خراسان لښکر سره د غور د تسخير په نيت را روان شو ۔ د فيروز کوه او هرات تر مېنځ قصبهٔ ''ناب'' سره نزدې د هري رود وادۍ کښې د ''سه گوشه ناب'' د مېدان په مقام ۱۱۵۱ء کښې زبردست جنګ وشو ۔ د جنګ نه وړاندې يو ورځ مخکښې د غور په شا د زمکو اوبهٔ خور شوې وهٔ ۔ او علاؤ الدين خپل لښکر اګاه کړې وهٔ ۔ د علاؤ الدين دا بدقسمتي هم وه چې د غور لښکر ښي اړخ شپږ زره سوارهٔ چې غزو، تُرک او په خلجيانو مشتمل وو ۔ سلطان سنجر طرف واوړېدل دغه وجه ده چې غوريانو شکست وخوړو ۔ او ډېر زيات په ختو کښې ونښتل ۔ د علاؤ الدين (بشمول) ډېر لښکر قېد شول ۔ د سلطان سنجر په حکم علاؤ الدين ګرفتار شو ۔ څو څو ورځې پس هغهٔ څخه د سلطان سنجر برتاؤ ښهٔ شو ۔ د هغهٔ ئې عزت وکړو ۔ او قېد نه ئې بهر کړو ۔

علاؤ الدین خنده رویه او تیوقمار وۀ . سلطان سنجر د هغهٔ
په پښو کښې د اوسپنې د تختـه بند اچولو حکم او طلب وکړو .
علاؤالدین ورته ووې ما څخه هغه سلوک وکړه چې ما تا دپاره سوچ
کړے وۀ . ما د سرو زرو تختـه بند تا دپاره ځان څخه راوړے وۀ .
سنجر د هغه تختـه بند حکم وکړو . او علاؤ الدین تـه ئې په خپو
کښې واچولو . سنجر علاؤالدین په اوښ سور بوتلو او د هغهٔ په
عزت کښې ئې هیڅ کوتاهي ونکړه . سلطان سنجر هغه خپـل دوست
کړو. یوه ورځ د علاؤ الدین نظر د سنجر په پښـو پرېوتـو . د هغهٔ په
پښه تور خاپ وۀ . د څپ ( ښـکلولو) کولـو اجازت ئې وغوښـتو .
اجازت نه پس چې هغـهٔ سر ټیټ کړو . نو سنجر د هغهٔ ویښـتهٔ کټه
مسواکه ګوتو کښې ټینګ ونیول . درباریان د بادشاه په دې حرکت
مسکي شول . خو وروستو سنجر په خپل حرکت ندامت اختیار کړو.
هغهٔ نه ئې معافي وغوښته .

سلطان سنجر د غور سیمه علاؤ الدین ته واپس کړه . ساز و
سامان او خزانې نـه عـلاوه هغـهٔ د اسونو ، ګډو ، چیلو او اوښـانو
رمې د علاؤ الدین حواله کړې . او علاؤ الدین ته ئې ووئېـل . تـهٔ زمـا
ورور ئې او دا ټول مـال و متـاع غـور تـه یوسـه . الله پـاک کـه د غـزو
خلاف ماته فتح راکړه . نو دا هر څهٔ به زما پـه طلب واپـس کړې . خو
کهٔ زما سلطنت ختم شو . نو دا هر څهٔ ستا دي .

علاؤ الدین دوباره د فېروز کوه تخت حاصـل کـړو . خراسـان
کښې د ګرفتـارۍ پـه سبب چې بامیـان ، طخارستـان ، زمینداور ،
ګرم سېر ، بُست ، قلعه ټولک ، هـرات آزادي اختیـار کړې وه . دغـه

ئې شپږ کاله پس واپس قبضه کړل ـ غرجستان ئې فتح کړو ـ د دریائے مرغاب په غاړه قلعه جات ، قلعه سبکجي فتح کړل ـ علاؤالدین ۱۱۴۹ء تا ۱۱۲۱ء دولس کاله حکومت نه پس وفات شو ـ او ''سنګه غور'' کښې د خپل مشرانو او وروڼو په خوا کښې ښخ شو ـ

## غیاثؒ الدینؒ محمد سام

پیدائش ۱۱۳۹ء تا وفات ۱۲۰۲ء
سلطنت ۱۱۲۳ء تا ۱۲۰۲ء
د غیاث الدین سلطنت ګورګان نه تر بنګال قائم وۂ ـ د دوي یو اعلیٰ مجسمه دوشنبه (تاجکستان) کښې موجود ده ـ

---

## شہابؒ الدینؒ محمد سام / محمد غوري

پیدائش ۱۱۴۹ء تا ۱۴ مارچ ۱۲۰۶ء شهادت
شهاب الدین محمد غوري به د جنګ دوران ښخي خاموش وۂ ـ او تر هغه به ئې چا سره خبرې نه کولې تر څو به چې مکمل فتح حاصل نۂ وه محمد غوري د غیاث الدین غوري د وفات نه وروستو مکمل اختیارات سره ۱۲۰۲ء نه ۱۲۰۶ء پورې شهنشاهِ سلطنت وۂ ـ دوارۍ وروڼو ۱۵۰ هندو راجورې فتح کړې وې ـ

# د غور د فیروزکوه ''جام مینار''

۱۱۹۳ء کښې محمد غوري د پرتهوي راج د شکست نه وروستو قطب الدين ایبک د هند د سلطنت بادشاه کړو ۔قطب الدين ایبک هم دغه کال په دهلي کښې د ''قطب مینار'' تعمیر د فتح په یاد شروع کړو ۔ددې مینار اوچتوالے ۷۲.۵ میټره یعني ۲۳۸ فټ دے ۔ دا مینار په ۱۲۲۰ء کښې سرته ورسېدو ۔ددې مینار په خوا کښې علاؤالدين خلجي ځانله یو مینار شروع کړو ۔خو هغه ډېر زر وفات شو۔ زۀ د دغه مینار سر ته وختم ۔او ددې د کاڼو او خښتو جائزه مې واخېسته ۔ما دغه سریخن مومیائي یا ګیلو شان جوړ سیمنټ مې په بکر کاڼي وټکول۔خو کاڼي ماتېدل او هغه سریخ بالکل نه رژېدل۔د فېروز کوه (ګرمائي مرکز) جام مینار غیاث الدين سام ۱۱۷۴ء کښې شروع او ۱۱۹۰ء کښې تکمیل ته ورسېدو ۔دا مینار ۶۵ میټره یعني ۲۱۳ فټ اوچت دے ۔چې د قطب مینار نه لږ ټیټ دے ۔(۱)اول تولي خان بن چنګېز خان دا ښار ۱۲۲۰ء کښې لوټې لوټې کړو (۲)ورپسې ۲۰۰۱ء کښې طالبانو د قیمتي اشیاء په لټون دړې وړې کړو ۔او چې کوم قیمتي او بې بها نوادرات ئې بیا موندل۔د هرات ، کابل او تهران (ایران) په بازارونو کښې خرڅ کړل ۔او دغه مسلمانانو طالبانو د یو داسې پوخ مسلمان محمد غوري او سپه سالار غیاث الدين محمد

سام نخښي نخښاني ختم کړې د چا چې اسلام د پاره زبردست خدمات وو۔

د غور د فيروز کوه جام مينار

| ابتداء | تکميل |
| --- | --- |
| ۱۱۷۴ء | ۱۱۹۰ء |

عاليشان ګلکاري ، سورۀ مريم ۱۹

لمبائي ۶۵ ميټره يعني ۲۱۳ فټ

د فتوحات نخښه ،

تعمير :- د غرۀ په لمن کښې

تولي خان او طالبانو د لاسه تباهي

دهلي کښې د قطب الدين ايبک قطب مينار

| ابتداء | تکميل |
| --- | --- |
| ۱۱۹۳ء | ۱۲۲۰ء |

ساده

۵ . ۷۲ فټ

د پرتهوي راج د شکست نخښه

د يو ډېکی په سر

سلامت ولاړ

# ملک ناصرالدین حسین او سیف الدین محمد

## ۱۱۲۱ء تا ۱۱۲۳ء

د سلطان علاؤ الدین حسېن د سلطان سنجر سره جنګ، قېد او د غور و جبال د مملکت ویراني د غور د سرکشانو او باغیانو دپاره د فتنو اغاز وۀ. څوک چې چرته اباد وو. هلته قابض شول.

ناصرالدین حسېن بن شهاب الدین محمد فېروز کوه قبضه کړو او د سلطان علاؤ الدین او سېف الدین (د علاؤ الدین زوئې) خزانې ئې قبضه کړې. سلطان علاؤالدین چې د سنجر نه انتهائي اعزاز و اکرام سره غور ته واپس راغلو او د هرات کوهستاني علاقې ته راورسېدو. د هغۀ د رارسېدو په سبب ځینې کسانو ناصرالدین هم دغه ۱۱۲۱ء کښې قتل کړو.

د سلطان علاؤ الدین وفات وروستو د هغۀ زوې سېف الدین د فېروز کوه بادشاه شو. هغه صرف یو کال بادشاه وۀ. سپه سالار درمېش بن شیش ئې قتل کړو. دوېم زوې ئې علاؤ الدین اتسز وۀ چې د غور حکمران وۀ. د سلطان سنجر دوفات وروستو د خراسان مختلف علاقو کښې افراتفري وه. د دغه فتنو اور غور، کوهستان، غزنه او غرجستان ته هم راورسېدو. د غور پهلوان سپه سالار ابو العباس شیش (شیشاني) د خپل ورور درمېش بن شیش بدل واخستو او غزو څخه د جنګ دوران ئې ۱۱۲۳ء کښې سېف الدین قتل کړو. دۀ نه پس اتسز بن علاؤ الدین درې کاله ۱۱۲۳ء تا ۱۱۲۲ء د غور حکمران وۀ.

# سلطان الاعظم سلطان شهاب الدين ابوالفتح محمد سام

سلطان بهاؤ الدين سام د ګیلان په مقام وفات شو ـ د هغهٔ دوه زامن غیاث الدین محمد سام او معزالدین محمد سام وهٔ ـ سلطان علاؤ الدین چې تخت نشین شو نو هغهٔ دا دواړه ورونه په قلعه وجیرستان کښې قید کړل ـ د علاؤ الدین په انتقال سلطان سیف الدین محمد ۱۱۲۱ء تا ۱۱۲۳ء دا دواړه ازاد کړل ـ

غیاث الدین بادشاه فیروز کوه او معزالدین سپه سالار بامیان کښې سکونت اختیار کړو ـ غیاث الدین عموماً سلطان سیف الدین او معزالدین خپل ترهٔ فخرالدین ۱۱۵۲ء تا ۱۱۲۳ء سره وهٔ ـ

غوریانو ۱۲۰۱ء کښې په نیشاپور حمله وکړه ـ فتح ئې کړو ـ خو سلطان محمد خوارزم شاه دوباره قابض شو ـ

د بهرام شاه د وفات نه وروستو د هغهٔ زوے خسرو شاه دوباره غزنه فتح کړه ـ خو غزو غزنه فتح کړو او خسرو شاه لاهور ته فرارشو ـ

سلطان شهاب الدین د غور همه علاقه فتح کړه او څو کاله دننه قادس ولایت کالیون فیوار او سیفرود ئې قبضه کړل ـ غرجستان، طالقان او جرزؤن هم قبضه شول ـ ګرم سیر (سجستان)

او تګین اباد ئې د سلطان غیاث الدین حواله کړل. غزنه ، زابل او جروم ته ئې فوځ واستولو. دغه زمانه کابل ، زابل او غزنه د غز قبیلو په تصرف کښې وو.

۱۱۷۳ء کښې شهاب الدین جبال غور د خراسان د غز سردارانو نه غزنے واخستو. غز کۀ ډېر تکړه وۀ خو صفا مېدان کښې ئې د غوریانو د مقابلې نه بې بس وۀ. غزنه چې فتح شو. نو غیاث الدین ئې د غزنه په تخت کښېنولو. او په خپله فېروزکوه (غور) ته راغلو.

۱۱۷۵ء کښې ئې د بهاؤ الدین طغرل نه هرات قبضه کړو. طالقان ، اندخوذ ، مېمنه ، فاریاب ، پنجده، مروالرود ، دزق او خلم د غوریانو په قبضه شوي.

غزنه د غز جنګجو عسکریت پسند په مناسبت دے.

۱۱۹۲ء کښې د سلطان غیاث الدین بادشاه په حکم شهاب الدین غزنه. ملک شمس الدین بن مسعود ۱۱۶۳ء تا ۱۱۹۲ء بامیان او ملک تاج الدین حرب سیستان نه د سلطان شاه حکمران مرو خلاف روان شول. سلطان شاه او بهاؤالدین طغرل دواړه قتل شول.

۱۲۰۰ء کښې د سلطان تکش خوارزم شاه وفات نه وروستو نېشاپور فتح شو او ملک علي شاه بن تکش خوارزم شاه او نور سرداران مثلاً سرتاش کزلک خان وغېره ګرفتار شول. نېشاپور د ملک ضیاء الدین محمد بن علي شنسباني (د غیاث الدین او معزالدین د ترۀ زوے) حواله شو.

د مرو علاقه نصیرالدین محمد خرنک ته حواله شوه .د سرخس حاکمیت ملک تاج الدین زنګي مسعود بامیاني ته حواله شواو دغسې ټول خراسان د سلطان شهاب الدین حواله شو.
فېروز کوه د غور حکومت مرکز وه.

# سلطان شهاب الدين سام محمد غوري

د سلطان تکش خوارزم شاه وفات نه پس محمد خوارزم شاه د سلطان شهاب الدين سام په خدمت کښې قاصدان راؤلېږل چې زما د پلار او غوري سلاطين ترمېنځ دوستانه تعلق او رفاقت وۀ ـ ماهم خپلو غلامانو کښې شمار کړه ـ خو د محمد غوري په هغۀ د هېڅ قسم اعتماد نۀ وۀ او هغوي د هغۀ دغه پېشکش قبول نکړو. د خوارزم شاهان خود غرض او د لوظ قول خلاف شاهان وو ـ دغه وجه ده چې غوري شاهانو په دوي د سلطان شهاب الدين محمد سام د عسکريت داستان دې مختصر روئيداد نه وروستو ډېر مختصر د هغۀ د هند د فتوحات ذکر کوؤ ـ تفصيل به نۀ بيانوؤ ځکه چې د هندوستان په هر تاريخ کښې موجود دے ـ

وائي چې سلطان غازي اسلامي لښکر ساز کړو ـ د هند په لور روان شو ـ سرهند فتح شو ـ پرتهوي راج المعروف رائے پتهورا سره د ترائن په مقام جنګ وکړو خو دې جنګ کښې اسلامي لښکر شکست وخوړو ـ سلطان غوري سام سخت ژوبل شو او د اس نه د پرېوتو په حالت شو خو دغه وخت يو بهادر خلج ځوان ورتوپک کړو ـ دده په اس وروستو سور شو او غېږ کښې ئې سلطان ته سهارا ورکړه ـ او ډېر په تېزئ ئې د مېدان جنګ نه رابهر کړو او محفوظ مقام ته ئې راورسولو ـ

سلطان دوہم وار هند پلؤ راجه پرتھوي سره جنګ دپاره روان شو ۔پرتھوي د دې جنګ دوران قتل شو ۔ دهلي ، د اجمیر مرکز سوالک[1] ۱۱۹۲ء کښې فتح شول۔ وائي چې دوہم ځل هندوستان پلؤ را روان شو او پېښور ته راورسېدو ۔د غور یو سپین ږیري افسر د سلطان نه تپوس وکړو چې د سلطان څۀ اراده ده او موږ کوم خوا روان یُو ۔سلطان ورله جواب ورکړو چې د کومې ورځې نه ما د هندوانو نه شکست خوړلے دے په بستره مې آرام کړے نۀ دے ۔ جامې مې بدلې کړې نۀ دي۔ کور ته ورغلے نۀ یم۔دا یو کال مې په غم کښې تېر کړو ۔پښتنو، غوریانو ، خلجیانو په خدائے تعالیٰ پرېښودے وم۔سلام خو څۀ کوې د دوي مخ ته مې کتلي نۀ دي۔اوس مې په خدائے تعالیٰ توکل کړے دے او هندوستان ته روان شوے یم ۔غوري افسر ددۀ لاس ښکل کړو او عرض ئې وکړو چې دا ځل به ټول افسران د سلطان په حکم ځان قربان کوو ۔او د تېرې بدنامۍ بدل به راګرزوو۔خو مهرباني دا ده چې دوي معاف کړه[2]۔

قطب الدین ایبک ورله میرتهـ ، دهلي ، کول (علي ګړهـ) ۱۱۹۳ء کښې فتح کړل ۔

۱۱۹۴ء کښې بنارس ، قنوج او ډېر هندي علاقه جات قطب الدین ایبک وروستو فتح کړل ۔څۀ موده وروستو د کهوکهر قبیلې او د کوه نمک ( کلرکار) قبیلو د بغاوت خبر راورسېدو ۔د دوي بغاوت ئې هم ختم کړو۔

---

[1] د سوالک په مناسبت بر مومند کښې سوال قلعه۔

[2] تاریخ هندوستان (پشتو) ترجمه از تاریخ فرشته د سوات د بادشاه عبدالودود په حکم۔



سلطان شهاب الدین غوری شهنشاه افغان (۵۵۸هـ-ق)

**Sultan Shahab-ud-din Ghouride**
**Empereur Afghan (1192)**

## معزالدين سام المعروف شهاب الدين محمد سام نه پس دور

## حاجي علاؤ الدين محمد

## ۱۲۱۳ء تا ۱۲۱۴ء

حاجي علاؤ الدين محمد د غياث الدين او معزالدين د ترۀ زوی وۀ ـ هغه د غور بُست ، وجير ، گرم سېر ، درمشان ، روزگان او د غزنه څۀ حصه جاگيردار وۀ ـ د غور سلاطين چې خراسان فتح کړو ـ نو هغه د نېشاپور حاکم مقرر شو ـ سلطان محمد خوارزم شاه نېشاپور ته راغلو ـ زبردست جنگ وشو ـ خو علاؤ الدين شکست وخوړو ـ او غور ته راغلو ـ

د سلطان غياث الدين وفات ۱۲۰۲ء وروستو معزالدين د فېروز کوه تخت د غور ، غرجستان ، زميندا‌ور علاؤ الدين ته حواله شو ـ هغه د ضياء الدين درغور په نامه مشهور وۀ ـ ځلور کاله فېروز کوه ، غور او غرجستان ئې په قبضه وو ـ د نېشاپور د فتح وخت علاؤالدين د کوهستان د ملحدانو ( د باطني فرقې خلق ) خلاف مامور وۀ ـ

سلطان غياث الدين محمود ۱۲۰۲ تا ۱۲۱۲ء ابن غياث الدين محمد سام ۱۱۶۳ تا ۱۲۰۲ ـ سلطان معزالدين سام ملک علاؤالدين "درغور" ته فېروزکوه حواله کړو ـ سلطان غياث الدين محمد هرات کښې ۱۲۱۲ء کښې د علي شاه په سازش په

خپل محل کښې دشمنانو قتل کړو . ددهٔ د وفات نه پس سلطان بهاؤالدین سام ۱۲۱۲ تا ۱۲۱۳ء بن سلطان غیاث الدین محمود د فیروز کوه بادشاه شو. غوري او ترک امراء ئې په امداد ودرېدل.

د سلطان بهاؤالدین سام د تخت نشینئ نه دري میاشتې وروستو علاؤ الدین اتسز د محمد خوارزم شاه دربار ته ورغلو. او د سلطان بهاؤالدین سام خلاف د امداد طلبګار شو. محمد خوارزم شاه ملک خان حاکم هرات د غور تخت دپاره د علاؤالدین اتسز ملاتړ شو. ملک خان عجمي ترک وهٔ چې د خوارزم شاهي سلطنت اوائل کښې امیر حاجب[1] وهٔ او چا چې محمد خرنک قتل کړے وهٔ. هغه خراساني لشکر سره د اتسز په حمایت فیروز کوه ته روان شو. د غور ملوک او امراء په صلاح علي شاه د قېد نه ازاد شو. چې د غور سلطنت په حمایت د خراساني لښکر مقابله وکړي. خو غوري لښکر شکست وخوړو . او علاؤالدین اتسز ۱۲۱۴ء تا ۱۲۱۵ء بادشاه شو.

---

[1] دغه ملک خان حاکم هرات د سلطان محمد خوارزم شاه د غلامانو د لاسه وروستو قتل شو.

# سلطان معزالدين محمد سام المعروف محمد غوري
## ۱۱۲۱ء تا ۱۲۰۲ء

د علاؤالدين جهان سوز ۱۱۲۱ء کښې د وفات نه وروستو معزالدين محمد سام بن سلطان بهاؤالدين سام اميرالامراء او د هغهٔ ورور غياث الدين محمد سام ۱۱۲۱ء تا ۱۲۰۲ء سپه سالار شو. شهاب الدين سام محمد غوري د غور غرجستان ، زمينداور ئې ملک علاؤالدين ته حواله کړل ـ ۱۲۰۴ء کښې د خوارزم د فتح په نيت روان شو ـ هغهٔ د کهوکهر قبيلو بغاوت ختم کړو.

۱۱۷۳ء کښې ګرديز ۱۱۷۵ء کښې ملتان ۱۱۷۸ء کښې اوچ ۱۱۷۹ء کښې پيښور ۱۱۸۲ء کښې دېول او لاهور فتح کړل ـ ۱۲۰۲ء کښې د دمېل په مقام شهيد شو.

د يو خاص سازش تحت د هغهٔ خيمې ته رهتاس (جهلم سره نزدې د غوريانو په عسکري وردۍ کښې کهوکهران کافران ورننه شول ـ او محمد غوري ئې د دمېل په مقام شهيد کړو.

خان عبدالقدير خان د غوريانو هديره ډېر مناسب انتظام سره ښائسته کړه ـ او د غوري ميزائل موجد پخپل خرڅ د دمېل قبرستان شان و شوکت بحال کړو ـ عبدالقدير خان د غوري ميزائل موجد دے ـ الله پاک دې ورله ډېر عمر ورکړي.

# علاؤالدين اتسز غوري

## ۱۲۱۳ء تا ۱۲۱۵ء

سلطان علاؤ الدين اتسز (آتش سوز) د علاؤ الدين جهان سوز زوی وۀ چې د محمد خوارزم شاه د خراساني لښکر په امداد د غور حکمران شو . د غور سرداران او اميران د اتسز فرمانبردار شول . خو د غزنه اميران او تاج الدين يلدوز ئې مخالف وۀ . د ګيلان او "مرغ نوله" په مقام د غور حکمران اتسز او د غزنه د اميرانو تر مېنځ جنګ وشو . دغه جنګ کښې اتسز شکست وخوړو او قتل شو او د هغۀ د ترۀ زوی علاؤالدين علي بادشاه شو .

د سلطان علاؤالدين اتسز په شهادت د غور بادشاهت اختتام بيا موند . ملک غياث الدين محمد سام "درغور" چې فېروز کوه کښې تخت نشينی نه وروستو د علاؤ الدين اتسز په لقب مشهور وۀ . د ملک نصيرالدين حسېن د لاسه شهيد شو او د غور په سلطنت د غزنه او غور اميران مسلط شول .

سلطان علاؤ الدين محمد اتسز اګاهو نه د بسطام په مقام د شيخ بايزيد مزار ځخه جوخت خپل قبر دپاره زمکه اخستې وه . د وصيت مطابق هلته ښخ شو . ددۀ د سلطنت په اختتام د شنسبي سلاطين او غوري سردارانو سلسله ختمه شوه .

یاد ساتل پکار دي چې د منهاج سراج کتاب طبقات ناصري د تواریخي واقعاتو سننونو او ترتیب کښې زبردست تفاوت لري ـ ځینې وخت ما ډېر زیات کنفیوز کړي ـ خو د غوریا خیل تواریخ چې زۀ په دا عمر یعنې ۸۳ کاله دوران لیکم ـ نو مازغۀ مې ډېر ګډ وډ شي ـ خدائے دې وکړي چې زما په دې واقعات لیکل کښې څۀ بې ترتیبي وي ـ ما دې معاف کړي او ښۀ ترتیب دې څوک ورله ورکړي ـ

# د بامیان او طخارستان شنسبي حکمرانان

د الله تعالیٰ احسان وۀ چې شنسباني خاندان یعني غوري قبائل کښې لوے لوے بادشاهان پیدا شول. چې د غور کوهستاني علاقه کښې حکمرانان وو. د عجم و هند د هر علاقه جات د دوي تصرف کښې راغله. عن چې تر ننه د پېښور ګېرچاپېره علاقه د دوي په ګرفت کښې ده.

د بامیان او طخارستان غرئیزه سیمه هم د دوي په تصرف کښې وه. د سلطان علاؤالدین جهان سوز د غزنویانو نه د ملک الجبال او سیف الدین سوري د شهادت بدل اخستو وروستو بامیان او طخارستان فتح کړل او خپل ورور فخرالدین مسعود ئې د هغه ځاے حاکم کړو. فخرالدین مسعود ۱۱۵۲ء تا ۱۱۲۳ء د ملک قطب الدین حسن مشر زوے وۀ.

د ملک فخرالدین مسعود د وفات نه وروستو د هغۀ زوے شمس الدین محمد ۱۱۲۳ء تا ۱۱۹۲ء د بامیان و طخارستان حکمران شو. هغۀ بلخ، چغانیان، وخش، جروم، بدخشان او شقنان پخپل سلطنت کښې شامل کړل. د شمس الدین په وفات سلطان بهاؤالدین سام ۱۱۹۲ تا ۱۲۰۲ بن فخرالدین مسعود د سلطنت وارث شو. ددۀ د اقتدار په زمانه د بامیان مشرق کښې واقع کشمیر، مغرب طرف ترمذ و بلخ شمال پلؤ د کاشغر سرحد او جنوباً غور و غرجستان وو.

# د غوري شاهانو مرکزي شاخ

1. عزالدین حسین ۱۱۰۰ء تا ۱۱۴۶ء
2. سلطان سیف الدین سوري ۱۱۴۶ء تا ۱۱۴۹ء
3. علاؤالدین جهان سوز ۱۱۴۹ء تا ۱۱۶۱ء
4. سیف الدین محمد ۱۱۶۱ء تا۱۱۶۳ء
5. سلطان شهاب الدین محمد سام ۱۱۶۱ء تا ۱۲۰۶
6. سلطان علاؤ الدین محمد رضاءالدین درغور ۱۲۰۲ء
7. غیاث الدین محمود ۱۱۶۳ءتا ۱۲۰۲ء
8. بهاؤ الدین سام بن محمدبن جهان سوز صرف درې میاشتې ، ۱۲۱۲ء تا ۱۲۱۳ء
9. علاؤالدین اتسزحسین بن علاؤالدین جهان سوز[1] ۱۲۱۳ء تا ۱۲۱۴ء
10. علاؤالدین محمد دوهم خل ۱۲۱۴ء تا ۱۲۱۵ء

یاد لرل پکار دي چې ۱۲۱۵ء کښې خوارزم شاه په ملک قبضه وکړه. د غور سیمه ئې تهس نهس کړه. لاتبرېرو ته ئې اور ورته کړو او ډېر خلق ئې ووژل. د تاتاریانو د لاسه خوارزم شاهي سلطنت هم ببخي ختم شو.

[1] ترکي غلام تاج الدین یلدوز اتسزقتل کړو او د هغهٔ د ترهٔ زوئے علاؤ الدین محمد ئې بادشاه نامزد کړو.

## د باميان حکمرانان

1. فخرالدين مسعود ۱۱۵۲ء تا ۱۱۶۳
2. شمس الدين محمدبن مسعود ۱۱۶۳ء تا ۱۱۹۲ء
3. بهاؤالدين سام بن شمس الدين محمد ۱۱۹۲ء تا ۱۲۰۶ء
4. جلال الدين بن علي ۱۲۰۶ء تا ۱۲۱۵ء

۱۲۱۵ء کښې خوارزم شاه جلال الدين علي قتل کړو.

## د غزنه حکمرانان

1. سيف الدين سوري ۱۱۴۶ء تا ۱۱۴۹ء
2. سلطان معزالدين محمد سام ۱۱۴۷ء
3. علاؤالدين محمد بامياني ۱۲۰۶ء


قطب الدين حسن
عزيز الدين حسين
قطب الدين محمد
ملک الجبال
مقتول درغزنه
۱۱۴۷ء
سیف الدین سوري
مقتول درغزنه
۱۱۵۰ء
شهزادي جوهر ملک
زوجه سلطان شهاب الدين غوري
علاؤالدين
جهان سوز
علاؤالدين اتسز
سیف الدین محمد
بهاؤالدين سام
وفات ۱۱۵۰ء
سلطان معزالدين
سلطان غياث الدين
جمشید
ناصرالدين محمد
(بندار)
فخرالدين مسعود
والي غرجستان
شهاب محمدهوتک
(مادين)
ناصرالدين حسين
مقتول ۱۱۵۳ء
سیف الدین
سوري
شهاب الدين علي
ناصرالدين ابوبكر
متوفي دهلي ۱۲۲۳ء
شجاع الدين علي
(خرماس)
علاؤالدين محمد
ركن الدين ايران شاه
شهادت ۱۲۱۰ء
علاؤالدين مسعود
علاؤالدين امير
(غزنه)
فخرالدين مسعود
(رئيس باميان
شمس الدين محمد
بهاؤالدين سام
علاؤ الدين امير
جلال الدين علي
۱۲۰۲تا ۱۲۱۵ء

# نیمروز / سیستان

د محمود غزنوي د سلطنت اختتام نه پس چې سلجوق د غزنه واک اختیار خپل کړو نو بل طرف د سیستان امیرانو اقتدار حاصل کړو ـ الپ ارسلان او ملک شاه مشهور و معروف حکمرانان وو ـ امیر طاهر د نیمروز حاکم شو ـ دۀ نه پس ملک تاج الدین بیا د هغۀ زوی شمس الدین بادشاه شو ـ او وروستو د نیمروز تاج الدین حرب بادشاه شو ـ هغۀ د غور د سلاطین بیعت وکړو ـ او د سلاطین غور نوم ئې خطبه کښې شامل کړو ـ تاج الدین حرب ۱۲۳۳ء/ ۶۱۲ھ کښې وفات شو ـ د هغۀ زوی بهرام شاه حرب بادشاه شو ـ ددۀ په زمانه د تاتاریانو د حملو په سبب د نیمروز او سیستان سیمه تباه و برباد شوه ـ د بهرام شاه د شهادت نه پس رکن الدین بادشاه شو ـ د نیمروز مکمل فوځ د چنګېزیانو د لاسه ختم شو ـ

"سلطان تکش محمد خوارزم شاہ کے بیٹے سلطان رکن الدین غوری ـ شائستی کا اتالیق مقرر ہوا۔"[1]

سلطان معزالدین سام یوه جرګه مقرر کړه چې معزالدین محمد سام حکمران غزنه ، سلطان شمس الدین حکمران بامیان ، ملک تاج الدین حرب حاکم سیستان په دغه جرګه کښې شامل وو ـ ۱۱۹۲ء کښې د مرو د تُرک لښکر او غوریانو تر مینځ زبردست جنګ وشو ـ د مرو سلطان شاه شکست وخوړو ـ او مرو ته واپس وتښتېدو ـ

---

[1] طبقات ناصری، ص ۵۳۷

"يونس خان بن سلطان تكش غائر بقاخان رئيس ايغور يه پر حمله آور هوا"[1]

ايغوره د چين په سنكيانگ كښې يوه لويه د پښتنو د غوري قبائل يو شاخ دے. (زما په خيال د باشندگان ايغوريه نقل مكاني ١١٩٢ء وروستو ده.)

د چنگېز خان د حملې په وخت علاؤ الدين خوارزم شاه ناجوړه شو. د هغهٔ زوے جلال الدين منكبرتي ډېر په تېزۍ هندوستان نه د نيمروز بُست، زميندا‌ور په لار غزني ته راورسېدو. هغهٔ په لار كښې ملک خان هراتي به لقب امير / امين حاجب سره هم ليدل كتل اوكړل. ملک خان هراتي د محمد خرنک غوري قاتل وهٔ.

د الله پاک قدرت گورئ چې د غوريانو احسان مند خوارزميان نهٔ صرف د مېدان نه ورک شول. بلكې د غوريانو نمک خوار خوارزميانو د تاتاريانو نه د يو اس په سر جنګ بائيلودو. جلال الدين شكست نه وروستو دريائے سندھ ته اودانګل. هند كښې په پناه اخستو مجبور شو. او وروستو ئې د مرګ ژوند هېڅ پته اونهٔ لګېده.

تاتاريان د مذهب په لحاظ اسمان پرست وو. اسماني ديوتاګانو ته ئې پرستش عام وهٔ. د دوي د ديوتاګانو مجسمات د نوربُت پرستو نه جدا شكل وې. ددغه ديوتاګانو مجسمې غټې او خېټې كافي پړسېدلې وې چې ګوندې د دوي په خېټو كښې د دنيا ټوله برخه جمع او تسلط كښې ده. د دهشت او وحشت علامات وو.

---

[1] طبقات ناصري، ص ۵۵۴

# شنسباني غوري خاندان

## شجره

"مولانا فخر الدین نے ان شنسبانی سلطانوں کا ذکر حکمرانی کے آغاز سے ضحاک تک پُشت به پُشت کیا ہے[1]۔"

"اس خاندان کا نسب ضحاک سے شروع ہوتا ہے۔ بسطام تک چھ پشتیں ہیں۔ حالانکہ ضحاک سے بسطام تک زیادہ پشتیں ہونی چاہئے۔ بسطام غور میں ابتدائی ابادکاری کا ذمہ دار ہے[2]۔"

د کتاب طبقات ناصري دا دلیل غلط دے چې ګوندې غوریان دراصل عربي النسل وۀ یا ضحاک، تازي النسل وۀ۔ د اسلام راتګ وروستو د لوے ورو کي اقوام کوشش وۀ چې خپل شجرات عربي النسل قوم سره مربوط کړي۔ او د خپل اقوام قومیت د عرب اعلیٰ ذات سره اوتړي۔ او د عرب قوم جد امجد سره ربط لازمي شو۔ خو پښتانۀ داسې حرکات ناکام کړل۔ بیا ئې ضحاک د یو فرضي داستان کردار کړو۔ خو دغه استدلال هم چا قبول نکړو۔ ځکه چې دغسې د فارسي د پاستان یا پېښه، دې تمام تر شاهان د ګمنامی ښکار کېدل او عن چې په خراسان کښې د اخیري بادشاه یزدګرد سوم ساسان ۶۳۴ء/ ۱۳ھ تا ۶۵۱ء/ ۳۹ھ قتل هم افسانویت اختیاره وو۔

---

[1] طبقات ناصری، ص ۵۸۰

[2] ایضاً، ص ۲۲۵

بسطام نه وروستو یوه لویه خلاء ده. بیا د فولاد غوري نوم یو حکمران ذکر راځي چې د بني امیه خلاف د عباسیانو په حمایت د ابو مسلم مروزي خراساني حمایت یافته وو. ځوک چې د عباسیانو داعي وو. او وروستو د بني عباس دوېم خلیفه ابو جعفر المنصور قتل کړو. بیا یوه لویه خلاء پېدا شي. او د بنجي بن نهاران بیان شروع شي. دا د هارون الرشید ۷۸۲ء تا ۸۰۹ء دور وي. بیا ځلورم ځل خلاء پېدا شي. او د امیر سوري او امیر محمد بن سوري ذکر شروع شي. او سلطان محمود غزنوي په غور قابض شي. چې صرف د غزنوي حکمران باج ګزار وو. سلطان چې امیر محمد بن سوري ګرفتار غزنه ته روان کړو. نو دغه غېرتي پښتون دوران سفر وفات شو.

محمود غزني د هغهٔ زوے ابوعلي بن محمد سوري د غور حکمران مقرر کړو. څهٔ موده وروستو د ابوعلي ورور شیث زوے عباس په غور قابض شو. ځوک چې د غزنویانو سخت دشمن وهٔ. سلطان ابراهیم غزنوي عباس معزول کړو او د هغهٔ زوے قطب الدین حسن ئې د غور حکمران تسلیم کړو. ددې ځایه د غوریانو سلسله نسب شروع شو.

د غوري حکمرانانو درې شاخونه دي. (۱) د غور مرکز فېروز کوه چې وروستو هرات هم لوے مرکز وهٔ (۲) غزنه (۳) بامیان. د مسلک په لحاظ سلطان محمود غزنوي شافعي وهٔ. او طبقات شافعیه کښې ددې ذکر موجود دے. د شهاب الدین محمد غوري تعلق حنفي مسلک سره وهٔ. عباس خلفاء هم د امام اعظم معتقد وو.

# د غوریانو ماتحت او احسان مند سلاطین دهلي

د هندوستان په زمکه خاندان غلامان د خلجیانو حکومت د تغلق خاندان یعني سلاطین دهلي د غوریانو د بادشاهت مرهون منت وو. قطب الدین ایبک (ایبک پمعنٰی د لاس کچې ګوتې نه محروم یا شل)، التمش، رضیه سلطانه د غوریانو غلامان وو. خو دوي څخه عسکري قوت د پښتنو وۀ. دغسې د اراکوسیه (یوناني) الرخج (عربي) خلج (پښتو) یعني ددغه وخت د خلجیانو، غوریانو او نورو پښتنو لښکر د خلجي حکومت په ډاډ ولاړ وو. تغلق که هر څو تُرک نژاد وۀ. ولې تمام تر فوځ ئې د پښتنو په اساس وۀ.

د سادات خاندان اولنے حکمران ملک خضر خان ۱۴۱۴ء تا ۱۴۲۱ء هم پښتون خاندان څخه تعلق وۀ. ملک او د ملک په خطاب سرفراز وۀ. ددې خاندان اخېري حکمران علاؤ الدین عالم شاه بن محمد شاه وۀ. ۱۴۴۳ء کښې ددۀ ماتحت بهلول لودهي بغاوت وکړو. ۱۴۵۱ء کښې په دهلي قابض شو. د "ملک" د کلمې په استعمال هم غوري النسل ګڼلے شي.

د جونپور سلطان محمود شرقي ۱۴۵۲ء کښې شکست. د هغۀ جانشین محمد شاه شرقي او بیا سلطان حسېن شرقي تخت نشین شول. د شرقیانو د بیا بیا حملو نه هغه دومره تنګ شو چې ۱۴۲۸ء کښې ئې د پښتانۀ سردارانو جرګه مقرر کړه. دغه مشران

پہ دې متفق شول چې د روه پښتنو حمایت حاصل کړي ـ د هغهٔ بیان وهٔ چې هند کښې نور اقوام قام قبیله نهٔ لري ـ ولې زمونږ پخپل وطن کښې د پښتنو لویه قبیله پرته ده ـ چې د غُربت وخت تېروي ـ که مونږ د دهلي په سلطنت کښې دوي شراکت دار کړو نو زمونږ سلطنت به هم استحکام بیا مومي ـ او پښتانهٔ به هم د خوشحالۍ ژوند تېر کړي او اسوده حال به شي ـ بهلول لودي د "روه" د پښتنو په نوم فرمان جاري کړو او پښتانهٔ جوپې په جوپې را روان شول ـ شرقیان ئې د دهلي نه بهر اوشړل ـ ددې فرمان ذکر تاریخ شېرشاهي از عباس سرواني کښې موجود دے ـ

# لودیان

د لودیانو حکومت په درې اهم بادشاهانو مشتمل دے۔

1. بهلول لودي
2. سکندر لودي
3. ابراهیم لودي

۱۹۸۳ء کښې د هندوستان په دهلي کښې زۀ د لودیانو مزارات ته لاړ وم ۔د بهلول لودي او سکندر لودهي قبرونه د یو ګنبت دننه یو ځائے دي ۔ښۀ غټ او لوے قبرونه دي ۔چې د هغوي د جسامت مطابق دي ۔د چراغ دهلوي په مقبره کښې دي ۔خو د دغه قبرونو هيڅ حفاظت نشته ۔اول دغه محلو کښې مسلمانان اوسېدل ولې اوس دغلته هندوان اباد دي ۔یو لحظه د هغوي جلاه و جلال زما مخې ته ددغه دوه نامتو پښتون بادشاهانو ښکارې شوې ۔د طاؤسانو چغې وې لکه چې زمونږ استقبال ئې کوؤ ۔د قبرونو او ګنبت حالت ډېر ښۀ نۀ وۀ ۔د ابراهیم لودي قبر د پاني پت په هغه مقام دے چرته چې د دوي شهادت وۀ ۔ددغه عظیم بادشاه د قبر لیدل مو قسمت کښې نۀ وو ۔ځکه چې زمونږ د واپسۍ سفر د شپې وۀ۔

نن چې مونږ غوري قبائل د پېښور په سرسبزه زمکه مېشتۀ یُو ۔د بهلول لودي د هغه پېغام برکت دے چې مونږ ته ئې د هند په زمکه د ابادېدو پېغام رالېږلے وۀ ۔د پېښور په سیمه د غوري قبائل

سکونت د ضحاک د اولاد تسلسل دے چې غوریانو سوریانو د
سام و سور نسل شجره جات برقرار وساتۀ ۔نن مونږ په دې فخر
وياړو چې پېښور کښې د اباد پښتنو ژبه پښتو ده ۔نو دا ژبه به
ارومرو د غوريانو ، ساميانو او سوريانو وه ۔او دغسې به دا ژبه د
ضحاک او هغۀ نه وړاندې هم موجود وه۔
د غياث الدين محمد سام (سپه سالار) تعمير کرده مينار
باندې د سورۀ مريم ۱۹ په کوفي او عربي طرز تحرير کښې درج
دے چې د نفاست او ښکلا يو اعلیٰ نمونه ده ۔په دغه مينار داسې
الفاظ هم موجود دي چې لوستے نشي ۔چې د کومې ژبې دي ۔
ممکن ده پښتو وي ۔د فېروز کوه جام مينار تعمير ۱۱۷۴ء کښې
شروع شو او ۱۱۹۰ء کښې مکمل شو۔
د جام مينار د گُلکارۍ او نقش و زينت اعلیٰ نمونه ده ۔دا
مينار د هري رود په غاړه دے ۔پينځه شپېتۀ ميتره لوړ يعني
۲۱۳ فټ اوچت دے ۔د پخو خښتو جوړ دے۔
وائي چې د بهلول لودي دعوت او د هند په سرسبز علاقو
د مېشت لالچ د پښتنو ډېرې قبيلې را روان شوې ۔خو عين دغه
وخت بهلول لودي ۱۴۸۹ء کښې وفات شو ۔په دغه ورځو کښې د
جونپور مشر محمود شرقي وۀ ۔د هغه ځايه ډېرو خلقو سره راغلو
او د دهلي ښار ئې قلعه بند کړو ۔د پښتنو واړه تور سرې ئې هم
پدغه ښار کښې وې ۔د بهلول لودي په فرمان د روه پښتانۀ د مېړو
او ملخانو په شان را روان شول ۔د دهلي واکمن له خوا د سپه سالار
فتح خان هروي لښکر ته ئې شکست ورکړو ۔ډېرو پښتنو

سردارانو د بهرته تلو اجازت وغوښتو - بهلول لودي اسرار وکړو چې دوي دلته پاتې شي - خو هغوي ورته عرض وکړو چې مونږ دغه هېواد ته يوازې د تور سرو د پت ساتلو دپاره راغلي يُو .
سلطان بهلول لودي دوي ته ډېر انعامونه ورکړل - په دې وخت کښې کالو خان عرض وکړو - چې دا وار دې ستر واکمن ماله د انعامونو او سوغاتونو اخستلو څخه معاف کړي ځکه چې زۀ دلته په دغه نيت راغلے نۀ يم[1] -

سید جمال الدین افغانی رقمطراز ہیں: "کہ افغانی اُمراء نہ شاہ نشینوں پر بیٹھتے ہیں اور نہ کرسیوں پر۔ بلکہ اپنی مجلسوں میں جاجم اور ایرانی قالین بچھا کر اُن ہی پر بیٹھا کرتے ہیں۔ ان میں وہ شان و شکوک نہیں ہوتا۔ جو دوسری جگہ امراء کے درباروں میں پایا جاتا ہے۔ وہ اپنے خادموں اور نیچے درجہ کے لوگوں کے ساتھ بیٹھ کر کھانا کھانے میں ذلت نہیں محسوس کرتے[2]۔"

شیر شاہ اپنے دربار میں قبیلے یا خیل کے بارے میں سن کر بہت ناراض ہوتے تھے ز کیونکہ ایسے سوال سے بیگانگی اور جدائی کی بُو آتی تھی۔ جب کوئی اپنے آپکو پٹھان یا افغان بتادے تو پھر دوسرا سوال نہیں کرنا چاہیئے[3]۔

---

[1] تاريخ شير شاهي از عباس سرواني ، ترجمه دكتور دولت محمد ، پښتو ټولنه ، ص ۲۰۷

[2] الافغان ، ص ۱۲۹

[3] مخزن افغانی از نعمت اللہ ہروی (تلخیص) ، ص ۲۵

# د بهلول لودي پیغام

بهلول لودي ولد ملک کالا ۱۴۵۱ء/۸۵۵هـ کښې د دهلي بادشاه شو۔ خو د هغهٔ د بادشاهت خلاف د جونپور بادشاه سلطان محمود شاه شرقي سازشونه اغاز کړل۔ د سلطان محمود شاه شرقي نه وروستو محمد شاه شرقي او بیا سلطان حسین شرقي دغه سازشونو ته دوام ورکړو۔ بهلول لودي د شرقي سلاطین دلاسه دومره تنگ شو چې هغهٔ د پښتنو سردارانو او امیرانو سره ۱۴۲۸ء کښې صلاح وکړه چې د روه د پښتنو امداد حاصل کړي۔ هغهٔ د روه د پښتنو په نوم فرمان جاري کړو۔ ددغه فرمان ذکر تاریخ شیرشاهي از عباس سرواني کښې درج دے۔

هغهٔ وفرمائیل چې د هند ملک ډېر لوے او مال دولت نه ډک دے۔ نور بادشاهان قام قبیله نه لري۔ او زما خپل وطن کښې لویه قام قبیله ده۔ چې ډېر بهادر او تکړه خلق لري۔ پکار ده چې هغوي دلته اباد شي۔ زما ملاتړ شي۔ هغوي او ما دواړه ډلو ته به فائده ورسي۔ اندازه ده چې دا د ۱۴۲۸ء/ ۸۷۴هـ واقعه ده۔ ۱۴۸۹ء کښې بهلول لودي وفات شو۔ د هغهٔ زوے سکندر لودي تخت نشین شو۔ سکندر لودي ۱۵۱۷ء کښې وفات شو۔

# پټه خزانه

د افغانستان د بادشاه شاه حسېن[1] هوتک په امر د هغهٔ د دربار یو لیکوال محمد هوتک بن داؤد خان بن قادر خان هوتک په قندهار کښې د ۳۰ــ ۱۷۲۹ء / ۴۲ ــ ۱۱۴۱ هـ دوران د قدیمو او معاصر شاعرانو حالات د پټه خزانه په نوم یو کتاب ولیکلو او ددې کتاب اغاز ئې د شیخ المشائخ بابا هوتک د اشعارو څخه شروع کړو.

آ ، د مرغــــې غښـــــتلیو راشــــئ
پـــه تنـــګ ولاړ د پښـــــتونخوا شــئ
تــورې تېرې ، غشــې تــر مــلا شــئ
پـــه کلـــې کـــور بانـــدې مغـــل راغـــے

پښـــتنو هلـــئ پـــه غـــرهٔ جنـــګ دے
سُـــور[2] غـــر پـــه وینـــو د دوی رنـــګ دے
مهـــال د تـــورې دے د تنـــګ دے
پـــه کلـــې کـــور بانـــدې مغـــل راغـــے

---

[1] شاه حسېن د حاجي میرویس هوتک وفات ۱۱۲۷هـ زوے وهٔ ـ حاجي میرویس قندهار کښې ښخ شو ـ د حاجي میرویس دوېم زوے میرمحمود سیستان ،کرمان او ۱۱۳۵هـ کښې ئې د اصفحان (ایران ) تخت تر لاس کړو ـ دهٔ نه پس شاه شرف د ایران بادشاه شو چې د نادر شاه افشار د لاسه بې دخل شو ـ

[2] کوهِ سُرخ (غور)

د بابا هوتک زوی شیخ ملکیار د سوري (غوري) علاقو دغه سرو مغلو دیرغل او حملو نه بچ وساتله. خو مغل د اتغر اتهٔ غرونه) او مرغې په سیمه ورغلل او پښتون لښکر ئې ارغنداب پلؤ فرار ته مجبور کړل.

پټه خزانه د شیخ خرشبون پحقله لیکي چې د ے د کسي غر په مناسبت د عبدالرشید نمسے وهٔ. هغه د کس غر نه غوره مرغه ته راغلو. او هم دغه مرغه کښې وفات شو او اولاد ئې ارغستان کښې اباد دي.

شیخ متي ۶۲۳ هـ تا ۶۸۸ هـ بن شیخ عباس بن شیخ عمر بن خلیل. خلیل د غوریا، غوریا د کند بن خرشبون بن سره بن.

د شیخ متي اولاد پېښور او بډنی کښې اباد دي[1].

شیخ کته متي زي غوریا خیل پخپل کتاب "لرغوني پښتانهٔ" کښې چې "تاریخ سوري" نه نقل کا. چې دهٔ بالشتان کښې لیدلے وهٔ. شیخ کته وائي چې د تاریخ سوري مطابق امیر کروړ د امیر پولاد زوے وهٔ چې ۷۶۰ء / ۱۳۹ هـ کښې په مندېش کښې امیر شو. د امیر کروړ متعلق نور کتابونه بشمول طبقات ناصري خاموش دي.

وائي چې امیر کروړ د بالشتان خېسار، تمران او برکو شک فتح کړل اکثر به زمینداور کښې وهٔ. او د مندېش په شان محل ئې دغلته هم وهٔ. تاریخ سوري کښې لیک دي چې د غور امیران د پېړو راسې په غور بالشتان او بُست کښې اباد وو. او د

[1] پټه خزانه، ص ۲۴

''سُور'' اولاد وۀ ـ چې د سوهاک لـه پُښـتـه وو ـ علي ابـن محمد البُستي دتاريخ سوري نه د امير کروړ متعلق ويارڼه رانقل کړې ده.

د علي بن محمد البُستي د تاريخ سوري نه علاوه شيخ کته پخپل کتاب لرغوني پښتانۀ کښې د اسعد سوري بن محمد سوري چې په غور کښې وسېدو او د سوري خاندان په بادشاهي کښې د عزت خاوند وۀ ـ د تاريخ سوري په نوم هم يو کتاب ليکلے وۀ ـ د سلطان محمود او امير محمد سوري تر مېنځ جنګ کښې امير محمد سوري ګرفتار غزني تـه روان شو ـ او د ګيلان په مقام يو ناساپي وفات شو ـ نو اسد سوري ددۀ په وفات مرثيه وليکله.

ملکيار د سوري ډېر ځوانان راجمع کړل ـ د مغل او ملک يار تر مېنځ زبردست جنګونه وشول ـ د پښتنو ډېر کورونه ړنګ شول ـ دغه وجه وه چې ډېر پښتنو مرغې او ژوب ته هجرت وکړو اخېر ملکيار فاتح شو ـ مغل ئې وشړل او سوري (غور) ئې بيا اباد کړو.

'' کندوزمند فرزندان خرشبون بن سڑه بن اند ـ مؤرخين گويند که اين دو نفر در "غوړه مرغه" ارغسان قندهار مى زيستند ـ و از انجا از راهِ گومل د کابل به وادى ها ننگرهار و پشاور کوچيده اند ـ وُبقاياۓ مهاجرت اخير اين خاندان ها را در عصر مرزا الغ بيگ نواسه تيمور لنگ نوشته اند ۸۱۲ھ تا ۸۵۳ھ بااين حساب اين مهاجرت بعد از ۷۰۰ هجرى اغاز شده باشد ـ ''

شيخ اسد سوري **۴۲۵**ھ کښې بغنين کښې وفات شو ـ د امير سوري د بادشاهت دورانيه **۲۵۳**ھ وه ـ سلطان محمود غزنوي د غزنه ترک حکمران او امير محمد سوري د غور پښتون حکمران

همعصر وۀ ـ سوریانو د محمود حکمرانۍ منودو ته تیار نۀ وۀ ـ دغه وجه وه چې سلطان محمود یو لوی لښکر سره غور ته رادننه شو او قلعه آهنګران ئې محاصره کړه ـ کافي موده پس صلح وشوه ـ او سلطان محمود هغه او دهغۀ زوی شیش ځان سره بونګا روان کړل ـ امیر محمد سوري یو زبردست غیرتي پښتون وۀ ـ څوک وائي چې دغه دوران ئې د غیرت نه زهر وخوړل څوک وائي الماس ئې تیر کړو او څوک وائي چې د ګوتې د غمي لاندې زهر اول نه موجود وو ـ وې خوړل او ځان ئې د بې غیرتۍ ژوند نه خلاص کړو چې د بیهقي مطابق دغه جنګ ۱۰۱۴ء/ ۴۰۵هـ د ابن اثیر مطابق ۱۰۱۰ء/ ۴۰۱هـ واقع وو ـ وائي چې د شیش دا غلطي وه چې قلعه آهنګران نه رابهر شو او میداني جنګ ئې اختیار کړو ـ د امیر محمود د طرفه دعوی وه چې غوریان تر دغه وخته مسلمانان نۀ وو ـ او ددې جنګ اصلي سبب د اسلام او کفر جنګ وۀ ـ د امیر محمود دا دعوی ځکه غلطه ده چې د حضرت علي[رض] په لاس د غوریانو جدامجد امیر شنسب بیعت کړے وۀ او ماهوي سوري هم د حضرت علي مرستیال وۀ ـ

این مرزبان معروف سوری بعد از کشتن یزد گرد سوم سامان دامنه حکمرانی خود را بهر سُو وسعت داد ـ و بلخ و هری و بخارا را لشکر فرستاد ـ چنانچه فردوسی اشارت میکند ـ

ترجمه :- مشر زوی ته ئې بلخ و هرات ورکړو ـ هر اړخ ئې لښکر واستولو ـ چې لښکر زیات شو ـ نو زړۀ ئې د نور ځایه نیوۀ خواهش وکړو ـ فوځ ته ئې درم ورکړل او اباد ئې کړل ـ ددۀ زړۀ ته نزدې یو نامور کرسیون (شاید خرشبون) وۀ ـ چې جهان دیده

انسان وۀ ـ فخرالدین مبارک شاه د شهاب الدین سام د دربار مورخ وۀ ـ وائي چې غور کښې د کوراسون خرشبون د امیر کروړ په نوم یو غر دے[1] ـ

د مرو حکمران ماهوي سوري د یزدګرد د قتل نه وروستو په سوري مشهور شو ـ د خپل حکمرانۍ حدود ئې هر طرف اوږد کړل او بلخ ، هرات و بخارا تـه ئـې لښکر واستولو ـ فردوسي اشارتاً وائي :

به مهتر پسر داند بلخ دهری
فرستاد به هر سوئے لشکری

---

---

یکے ناسور پیش او ایذردان
جهاندیده ای نام او کرسیون
شهر بخارا نهادند روی
چنان ساخته لشکر جنگجوی

شیخ کته متي زي در کتاب لرغوني پښتانهٔ که از تاریخ سوري نقل کرده که : ''ښکارندوي بن احمد ساکن غور بود ـ د هغهٔ پلار احمد د فېروز کوه کوتوال وۀ ـ ښکارندوي د شهاب الدین محمد شنسباني په دربار کښې معزز شخصیت وۀ ـ د سلطان محمد سام په مدح ئې قصیده لیکلې ده ـ

[1] پټه خزانه از شاهنامه فردوسي ، ص ۲۲۳

## د يو حکايت له رويه د شيخ متي ذکر

شيخ متي چې خليلي وؤ
دے لـه آره لـوے ولـي وؤ

تاسو که زما کتاب هندکي او هندکو ص ۷۰ وګوري نو هر مُلک کښې درې قسمه خلق اباد وي. يو هغه خلق يا ذات چې د ټولو نه زيات او ځان اصل حقدار د هغه ملک بولي. دويم نور ښۀ ذاتونه او دريمه ډله په کمين يا غلام ذات مشتمل وي. دنيا چې د کله راسې په وجود کښې ده همدغه سلسله روانه ده. انسان، حيوان، اشجار، نباتات، معدنيات، ټول د ښۀ بد اصل لري. د دنيا د هر قام او ادب شاعرئ کښې د ښۀ خراب ذکر موجود دے. خصوصاً د پښتو د شعر په ژبه کافي ګڼ مثالونه موجود دي. انګريز پخپل دور دغه ويش په دې شکل ښکاره کړے دے.

1. پښتانۀ
2. نور نسلونه: لکه اعوان، باغبان، بلوچ، برهمن، ګکهر، جاټ، کشميري، کهتري، مغل، پراچه، قريشي، راجپوت، سيّد، شيخ وغيره.
3. کمين ذات: بټياران، چمياران، چوهړيان، درزيان، دهوبيان، ګوجران (ګاؤچر)، جولاګان، کولالان، لوهاران، مراثيان، ډمان، موچيان، مصليان، نائيګان، قصابان، زرګران، ترکانان وغيره.

د جهانګير پوره د ډمو چکله چرته لاړه چې بند شوه .نو دغه بدکارۍ په ټول ښار کښې خوره شوه او اوس ئې اخلاق د اهميت ور دي.

د هند و پاک تقسيم نه وروستو د درېم طبقې خلق پېشه ور هنرمندان حساب شول .ډم فنکار شو .قصاب نه قرېشي او دغسې نور پېشه ور اصل شول .دا د جمهوريت ضرورت وۀ .د اسمبلۍ رکنيت دپاره د دوي د ووټونو ضرورت وۀ .د هر دفتري خانه جات نه د ذات خانه ختمه شوه .د جائيداد اخستو اجازت شو .د مال دولت ګټه او د جائيداد انتقال عام شو .د اصل ذات دولت ته ضرورت وۀ .او بې جائيداد ته د زمکو.نتيجه دا شوه چې کمين ذات په هر ناجائز طريقه د زمکې د ملکيت خاوند شو .د ملک په نظام کښې د لوټ مار او کرپشن بازار ګرم شو او پاکستان د تنزل ښکار شو .اول د سړو په سندرو ښځو ګډا کوله اوس د ښځو په سندرو سړي ګډېږي .يو عجيبه شان د بې حيايۍ فضا ده .بهر حال زما ددې وېنا مدعا دا ده چې شېخ ، سيد ، آستانه دار دي، پښتانۀ نۀ دي، خليل که د شېخ متي يا امام الدين اولاد وي .نو دا سوچه او اصل پښتانۀ نۀ دي .د خليل قوم چا محقق له په دې موضوع ازسرنو تحقيق پکار دے .د شېخ ، سيد DNA د پښتون وينې برعکس دے .شېخ متي يا د پلوسۍ سيدان د غوريا خېل دنسل نۀ دي البته د احترام او د زکوٰة ، صدقو حقداران ضرور دي. د غوريانو پېښور ته د راتګ په وخت ځينې استانه دار ورسره هم راکوز شوي وو .د داؤدزي نسل متعلق هم ذاتي طور تحفظات دي.

پټه خزانه د مخزن افغاني از نعمت الله هروي تابع ده .او پټه خزانه
بو متنازعه کتاب دے .د مخزن افغاني په تتبع کښې نهٔ صرف د
مستشرقینو، تاریخ فرشته ، تذکرة الابرار والاشرار از اخوند
درویزه وغیره دلائل غیر مستند معلومیږي.
مومند ډیر ځایه مېشتهٔ دي .د بر مومند نه د تفاوت په
لحاظ کله ورسره د خلیل نامه او کله د باړه لفظ ارتباط کیږي.

# د امیر کروړ یاد

## نه څو اقتباسات

د جامع التواریخ مؤلف لیکي : "د اسلام تر ظهوره وروستو د اکثر پښتنو نسب قیس عبدالرشید او شنسب پورې رسي . دغه دواړه د پښتون قوم سرداران وو چې یو د کوه سلیمان او بل د غور په غورنو کښې اباد وو . د سیمرغ په اوږه سور د سلیمان کوه سلیمان ته راتګ محض یو لیجنډري افسانه ده ."

د ډېر دلائل نه ثابته ده چې غور د پښتنو لرغونے ټاټوبې او لرغوني غوریان پښتانهٔ وو . د غور په اوسني مرکز کښې که څهٔ هم اوس پښتو وئیلے نهٔ شي خو د مرکز په خواؤ شا کښې پښتانهٔ موجود دي.

د شنسباني پښتنو مشهور او مشر نیکهٔ ملک شنسب بن خرنک د حضر علي رض په زمانه کښې په اسلام مشرف شوے وهٔ. (دغه زمانه خلیفه وقت حضرت عثمان رض وهٔ.)

د پټې خزانې مؤلف محمد هوتک د تاریخ سوري په حواله لیکلي دي چې دې کورنۍ پېړو په پېړو په غور ، بالشتان او بُست کښې حکمراني کوله او د سهاک د پُشت نه وه.

د ګور یا غور کلمه ډېر ځایه پخوا راسې د غور قبیلې د اهمیت په سبب مشهوره ده . لکه غوریان و ایغوره ، دهنهٔ غوري ، غوربند ، ملا ګوري ، غوریا خېل ، غوري والا و غورالاردن.

د غور جغرافیائي چوړائي ۳۸۷۵۷ مربع کلومیتره ده. او د اوسني افغانستان اووم لوے ولایت دے. د خلقو تعداد ۳۳۹۰۰۰ دے. دغسې که مونږ وګورو نو ډېر فراخه زمکه لري. ولې ډېر کم خلق پکښې اباد دي. د اوسني افغانستان څلور دېرش ولایتونو نه یو د غور ولایت دے چې غزنه او زابل دواړه پکښې شامل دي او دا علاقه د مرکزي افغانستان شمال مغرب ته پرته ده او د هزارجات خلقو اوس د وسېدو ځاے دے. هر ولایت کښې ۱۰ ضلعې او سل کلي شامل دي او هر ولایت کښې تقریباً شپږ لکهه اووۂ پنځوس زره دوه سوه ۶۵۷۲۰۰ نفوس وسي. غور د هندوکش جنوباً او د افغانستان جنوب طرف علاقه ده.

د غور شمالاً جوزجان او فاریاب ، شرقاً : بامیان او ارزګان جنوباً هلمند ، فراه او ارزګان ، غرباً : بادغېس ، هرات دي.

وائي چې اریا د بلخ نه شمال مشرق په لور هجرت وکړو. نو ددغه مهاجرینو یوه ډله د لوړ دنګو غور غرونو په لمنو کښې اباد شول. او ددې ځاے نوم ئې غور کېښودو.

مخزن افغاني از نعمت الله هروي د نسلیات Geneology باره تر څه حده بنۀ کتاب دے. خو فرضي او خود ساخته نومونو باندې انحصار لري.

د غور د چغچران شمال ته د بند سیاه توب غر چې په شمالي لمن کښې ئې د چار صد او شمالي ډډه کښې د "مهمند" د سیمې باغ پروت دے. د چغچران خلق زیاتره فېروز کوهیان دي. دغه خلق د غور اصلي بچیان دي.

مہمند : ایں قریہ تا کنون ہم بہمین نام مشہور۔ و بفاصلہ تخمیناً (٦) میل بشرقِ قندھار بر جادہ کابل افتادہ۔ ور باط اولین بطرفِ کابل شمردہ میشود[1]۔

ترجمه :- دا کلے تر اوسه په دغه نوم (مهمند) مشهور دے .د قندهار شرقاًشپږ میله د کابل په لار پروت دے او دکابل طرف اولنۍ سرائے ده.

ښکاري چې په سوريانو کښې د پښتو شعر د اسلام له ابتداء څخه موجود وۀ .ځکه چې د امير کروړ د ژوند وخت پس له ۷۱۸ء/ ۱۰۰ هـ څخه شروع کېږي.د اسلامي دورې په وړومبني څلور سوه کالو کښې د غور او سُور قبائل د پښتو شعر او ادب زانګو وه.او پښتو ژبې پاخۀ اشعار او ادبي اثار لرل[2].

د شيخ اسعد سوري مرثيه ۱۰۳۳ء/ ۴۲۵هـ ، ښکارندوي ۱۱۸۵ء/ ۵۸۰هـ قصيده تايمني مثنوي اکبر زميندا وري ، ملک غرشين ، شيخ امام الدين خليل ، شيخ متي غورياخېل ، عبدالرحمان بابا ، عبدالحميد بابا غورياخېل ، معزوالله خان مومند غورياخېل د خپل وخت اعلیٰ شاعران وو.

د غور او سلېمان غرونه د پښتنو قديم ټاټوبي دي چې (۱)د کيس (قيس) نيکۀ ارتباط د سلېمان له غرونو سره وۀ .او (۲)د ملک شنسب ارتباط د غور له غرونو سره په زيات تر تاريخي واقعاتو کښې ثابت دي.اول په هېڅ ډول توجيه او دليل ځاے نۀ لري.

[1] پټه خزانه ، ص ۱۳۸ حاشيه
[2] د امير کروړ ياد ، ص ۳۰۵

د جامع التواریخ[1] مؤلف لیکي : د اسلام تر ظهوره وروستو د اکثرو افغانانو نسب (۱) قیس عبدالرشید او (۲) شنسب پورې رسي. دغه دواړه د پښتون قام سرداران وو چې د غور په غرونو کښې اباد وو[2]. د ملک عبدالرشید د اسلام قبولیت او واقعات وروستو تاریخ فرشته تذکرة الابرار والاشرار ، پټه خزانه ، لرغوني پښتانه دغه حالات د لیک مؤرخین دي چې خپل تحقیق ئې د کسي غرء کوه سیلمان ، کاسي په بنیاد جوړ داستان دے .خو د فخرالدین مبارک شاه تاریخ سوري او د سام و سور نسل کورنۍ ځانته جدا اساس لري.

امیر فولاد غور شنسبی از فرزندان ملک شنسب بن خرنک بود، و در حدود ۷۴۸ء/ ۱۳۰ھ در نواحی کوهستانی غور حکومت میکرد.

امیر کروړ جهان پهلوان که پسر او جانشین امیر پولاد بوده است و در هیچ یک از کُتب تواریخ و ماخذ نیست. پټه خزانه تنها کتابی است که ذکر از این امیر را در آن می یابم. شیخ کټه متی زی غوریا خیل در کتاب خود لرغوني پښتانهٔ چنین نقل کند از کتاب تاریخ سوری که آنرا در بالشتان دیده و یافته بود. شیخ کټه گوید که در تاریخ سوری اورده اند که امیر کروړ ولد امیر پولاد بود که در سال ۷۵۶ء/۱۳۹ھ در غور امیر شد و وی راجهان پهلوان میگفتند[3].

---

[1] جامع التواریخ المعروف مرأت العالم (اردو) ، طبع ۱۸۹۹ء لکهنؤ ، ص ۷۸

[2] د امیر کروړ یاد ، ص الف

[3] د امیر کروړ یاد ، ص ۲۰۹

امیر کروڑ به سال ۷۷۱ء/۱۵۴ھ در جنگ ہائے پوشنج در گزشت و بعد از وے پسرش امیر ناصر مملکت ہا راضبط کرد۔ و خداوند اراضی غور و سور و بُست و زمینداور گردید۔

بنجی بن نہاران شنسبی (حدود ۷۸۶ء/۱۷۰ھ) یکے از بزرگ ترین امرائے غور به بغداد نزد ہارون رشید رفت ------------ به امارت غور رسید و به لقب قسیم امیر المؤمنین ملقب شد و شیث بن بہرام به پہلوانی لشکر شناخته شد۔

د غـور ځینـې اهـم ښـارونه :- روزګـان ، فیـروز کـوه ، آهنګـران ، منـدیش (زارمـرغ) تولـک ، خـوابین، ګزیـو ، زرنـي ، تمـران ، والشتان، قره باغ ، تیوره ، دولت یار او چغچران، کاسي ، چهار در ، د بشـور نـاوه یـا مـان ، د پسـابند سـیمه، ورشـک ، بشوره سرمژګان ، یانت ، لروند وغیره۔

غرونـه :- سـیامکه (تـور غـر) کوسـر ادا ، زار مـرغ ، سـرخ غـر ، د ورشک غر ، د ورني غر ، د خیسار غر وغیره۔

# خوارزم شاهي / غورشاهي

د خوارزم شاه د خبرسګالي په توګه خپل سفير چنګېز خان
پلوْ لېږل او د پينځه سوه مال بردار ځاروؤ تجارتي سامان د تېموجن
چنګېز خان خوارزم شاه ته رالېږل يو ښهٔ قدم وهٔ . خو په لاره کښې د
اترار حاکم قدر خان د خوارزم محمد شاه په حکم تجارتي سامان
لوټل او د هغهٔ د سفير قتل د چنګېز خان مطابق يو لوے جرم او د
سفارتي اقداماتو او ادابو يو توهين وهٔ . چنګېز خان ددې غلط
اقدامات په نتيجه کښې زبردست قهر نيولے اول بخارا ، ثمرقند ،
نېشاپور وغېره علاقو کښې زبردست قتلان وکړو . علاؤالدين
محمد خوارزم شاه ۱۲۳۱ء کښې وفات شو . علاؤالدين محمد
خوارزم شاه خپل تکبر او ۱۲۱۵ء کښې د غور د کمزور حاکمانو د
سلطنت د خاتمې ذمه دار وو.

د چنګېز خان دوه بهادر نوين جبې او سوبيدائي بهادر
منګولي جرنېلان وو .

د محمد خوارزم شاه د يو زوے نوم سلطان رکن الدين وهٔ
ددهٔ د پېدائش په دوېمه ورځ سلطان معزالدين محمد سام د خوارزم
نه ناکامه ۱۲۰۴ء کښې واپس تللے وهٔ . په دې وجه ددهٔ نوم رکن
الدين به لقب غوري شانستي (غوري شکن) مشهور شو.

جلال الدين منکبرتي ته محمد خوارزم شاه د غور غزنه
حاکميت ورکړے وهٔ . دغه جلال الدين د پېښور او بوبکرپور خپل

نائب ملک اختیار الدین محمد علي خرپوست مقرر کړے وۀ ـ جلال الدين خوارزمي د نیمروز ، بُست او زمینداور په علاقه ځان غزني ته راؤرسوؤ[1] ـ چنګېز خان هم ددۀ په تعاقب غزنه ته راورسېدو۔ خو غزني ته د جهاد په غرض د سېف الدين اغراق په مشرۍ کښې یو لوے لښکر د جلال الدين خوارزمي امداد ته پېښور نه راورسېدو او د چنګېز لښکر ته ئې درې ځل شکست ورکړو۔ خو د جلال الدين او سېف الدين تر مېنځ د اس په سر ورانه راغله او سېف الدين پېښور ته خفا واپس شو ـ جلال الدين څلورم ځل جنګ کښې شکست وخوړو او هند پلؤ فرار شو ـ د غزنه په مقام دغه جنګ کښې اتیا لکه مسلمانان چې د غور او خلج جهادیان هم پکښې شامل وو ـ د جلال الدين د یو احمقانه حرکت په سبب د چنګېزیانو دلاسه قتل شول۔

د خوارزم محمد شاه دوم د تاتاریانو د خوف نه کله یو او کله بل ملک کښې پټېدو ـ اخېرکار په ډېر بد حالت مړ شو۔

"۱۰ جنوری ۱۲۲۱ء کو اپنی زندگی کے آخری ایام انتہائی غربت میں کاٹے۔ نہ پیٹ میں روٹی نہ بدن پر کپڑے، یہاں تک کہ اسے بے کفن دفن کر دیا گیا۔ جب اسے دفن کیا جا رہا تھا تو اس کے بدن پر جگہ جگہ سے پھٹی ہوئی میلی چیتھڑا سی بدبودار قمیص تھی۔ جو کہ شاید اسی کے کسی نوکر نے رحم کھا کر اسے دی تھی[2]۔"

---

[1] غزني کښې جلال الدين خوارزمي څخه د امیر خرنک غوري قاتل ملک خان هراتي چې د امین حاجب په لقب سرفراز وۀ ملاقات وکړو۔

[2] چنگیز سے انگریز تک ، قمر چغتائی، ص ۴۹

# پاستان / پیش ادي

اندازه لرم چې د پاستان خاندان جمشېد کۀ دا غلطي چې د غور خلاف ئې فوج کشي نۀ وے کړے نو شاید د پُرسکون ماحول غوریانو مشر ضحاک د هغۀ د تباهۍ سبب گرزېدلے نۀ وے ـ پاستن نسل ختم شو ـ ولې غوریائي نسل تر اوسه موجود دے ـ

دغسې د سلطان محمود غزنوي غلطي وه چې بلااشتعال او وجوهات ۱۰۱۰ء/ ۴۰۱ کښې ئې ترک النسل لښکر د غور دننه کړو او د امیر محمد بن سوري بادشاهي ئې تالاترغې کړه ـ نتیجه څۀ شوه ـ هغه دا چې د محمود غزنوي نسل و اخلاف د دنیا د مخه ورک شول ـ او غوریان موجود دي ـ

زما خپل ذاتي خیال دادے چې د اسلام نه اګاهو پاستان او پېشه ادي دوه ورونه وو ـ پاستان امیر الامراء او پېشه ادي د هغۀ سپه سالار شو ـ د پاستان او پاشتان (پښتون) په نومونو کښې فرق نشته ـ د پاشتان د وفات وروستو عام عوام د هغۀ د زامنو په تخت نشینۍ متفق وو ـ ولې پېشه ادي زوراور او ظالم وو ـ تخت ئې قبضه کړو ـ د پاستان زامن او مرستیال د هغۀ د زور و ظلم نه وتښتېدل او د غور په غرونو کښې ئې پناه واخسته ـ د دوي مشترکه ژبه د فارسۍ او پښتو په الفاظ مشتمل وه او د قواعد په لحاظ ئې ګرائمري ساخت یو شان وۀ ـ هر کله چې دواړه ورونه د یو

بل دشمنان شول او د بېل بېل علاقو خاوندان شول ـ او دغه يو ژبې سره د نورو ژبو ګډون شروع شو ـ نو يوه ژبه خالص پښتو شوه ـ او بله پهلوي ـ اريا چې ايران ته راورسېدل نو د اريا په مناسبت اريان او ايران شو او د ګور په مناسبت "پېشه آدي" د افغانستان دغه ولايت غور شو.

# پټه خزانه اختصار

پټه خزانه زما په نظر کښې د قاضي عبدالحليم اثر يو
ورکوټي شان کتابچه ده . د قاضي صيب زمونږ کلي ته د
عبدالرحمان بابا متعلق د معلومات حصول راتګ عام وۀ . د هغوي
د تحقيق او تواريخي پلټنې يو خاص انداز وۀ . هغوي ډېره لويه
مطالعه لرله . په دې ورکوټي شان کتاب کښې هغوي همدغه طرز
اختيار کړے دے . د کتاب د درېم باب ابوالفتح محمد بن علي
البوري ص ۳۵ قاضي اثر صيب متعلق څو پاڼې تنقيدي مقاله
ليکي او وائي چې متذکره ليکونکے د تاريخ سوري مؤلف نۀ دے .
بلکې د هغۀ زوے ابوالفتح علي بن محمد البستي د تاريخ سوري
اصلي ليکونکے دے . تاسو که زما کتاب ګورئ اسپې ص ۳۷۸
وګورئ نو ما د هغۀ نوم صحيح ليکلے دے . خو د هغۀ د وفات کال
مې ۱۰۱۰ء/۴۰۱ھ ښودلے دے . حالانکه دغه د محمود غزنوي او
امير محمد سوري تر مېنځ د جنګ تاريخ دے . خو د عبدالحليم اثر
مطابق د هغۀ د مرګ تاريخ ۱۰۱۴ء/۴۰۴ھ دے . ځکه چې
۱۰۱۰ء/۴۰۱ھ د اميرمحمود غزنوي په غور د حملې زمانه ده .
چې امير محمد بن سوري ئې ځان سره بونګا غزني پلؤ روان کړو .
خو د سفر دوران دغه غېرتي پښتون ځان د زهرو په خوړو مړ کړو .
ما د ابو الفتح علي بن محمد السبتي متعلق ليکلي وو:
"د بُست باشنده وۀ او د عربي ژبې يو ښۀ شاعر وۀ . ځواني کښې د

بُست د يو سردار بايتوز كاتب مقرر شو - دوي د مشهور محدث الخطابي البستي (وفات ۹۹۸ء/۳۸۸هـ) دوست وۀ - "

بلا د غورات نه مراد د هغه ټولو غرونو افغان دي چې د كوه هندوكش كوه سياه ، كوه بابا او كوه فېروزه په لمنو كښې پراتۀ وو - او په دې غرونو كښې د ولايت مېمنه د غور نه راغلي افغانان (پښتانۀ) په مېمندي ، مومندي نامه ياد ېږي -

مومند يو خاص جغرافيائي نوم دے - محمود مومند[1] يعني د مېمنه وسېدونكي درغورات په مشرقي خراسان كښې دي او د ښار هرات نه شمال مشرق طرف ته واقع دے - په خپله شهاب الدين د غور د فېروز كوه[2] -

قندهار د مېوند او د بلوچستان د مېوند نه چې كوم پښتانۀ د شهاب الدين غوري سره ملګري غزا ته تللي وو - هغه د مېوند په نسبت په مېمند ، مومند نامه ياد ېږي[3] - "

د ارغستان ، نوشكي ، قلات ، ګارړه ، سورغر ، اتغر وو - ځۀ د بلوچستان د كوه كند ، كوه مند ، كوهِ كش پښتانۀ وو - د قلات نه راغلي خليل په پېښور او باجوړ كښې د سور غر او اتغر نه راغلي په قبائلي علاقه مومند كښې اباد شول[4] -

---

[1] محمود مومند څوك وۀ - ښكاره نۀ ده - ممكنات لري - چې قاضي صېب مومند د محمود ماخذ ښودل غواړي -

[2] پټه خزانه ، قاضي اثر ، ص ۴۴

[3] همدغه اثر ، ص ۴۹

[4] پټه خزانه ، قاضي اثر ، ص ۵۰

**مقر**:- د افغانستان د غزني او قلات غلزي تر مېنځه د يو ځاى نوم مقر دے ۔د مقر وسېدونكي مومند وو ۔دوي د ننګرهار په مومند دره او قبائلي علاقه مومند دي ۔۱۱۹۹ء/۵۹۵هـ كښې د دهلي د فتح وروستو د نوې اباد كارۍ په سلسله كښې اباد شول ۔ سمت شمالي افغانستان د مېمند نه راغلي مومند په وزيرستان پرهوتل او هغه ځاے نه بركي پېښور ته راوَرسېدل ۔

د قاضي صېب دا بيان د پښتون مؤرخين دپاره ښځي نوے دے د غوريا خېل مومند د جلال الدين روښاني حمايت او د هغوي پېښور نه شړل د تواريخي واقعات يو لويه واقعه ده ۔زما د ګورې اسپې د وېنا مطابق د اُرمړ سيمه مومندو بركيانو ته د پيرۍ مريدۍ سلسله كښې بخشش وركړې ده ۔

بر مومند ته د سفر په لاړ كښې كړپه[1] راځي ۔دغلته د موسىٰ بابا غوريا خېل قام نيكهٔ موسىٰ بابا زيارت دے ۔ددې موسىٰ بابا اولاد د موسىٰ زئ دكن حيدرآباد ته ورسېدل ۔هلته ئې يو رياست جوړ كړو ۔او ورله ئې نوم كړپه كېښودو ۔چې د دكن په شپږ رياستونو كښې يو دا رياست هم وؤ ۔ددې تپه مومند د موسىٰ زئ كلي يوموسىٰ په ۱۷۶۰ء/ ۱۱۷۳هـ كښې د رياست كړپه كښې د حفظ الادب[2] په نوم ئې په پښتو ژبه منظوم په درې زره اشعارو مشتمل يوكتاب تاليف كړو ۔يو شعر ئې داد ے ۔

---

[1] كړپه د كړپ نه ماخوذ دے ۔د كړپه نوم ډېر ځايه پښتونخوا كښې موجود دے ۔

[2] د حفظ الادب ناچاپ نسخه او مائيكرو فلم ما سره د انګرېز دوست كريسټ كمينګ Christ Cammig په شكريه موجود ده ۔

مشهور چې په عالم دے
نوم زما رکن عالم دے

"د بیجاپور د عادل شاهي کورنۍ په اختتام مومند پښتنو د کرناټک کړپه ، کانور او سانور باندې خپل ګرفت مضبوط وساتۀ - د عبدالکریم خان میارنه نمسي عبدالمجید خان او د هغۀ زوے بهلول خان تر ډیرې مودې د پښتنو وقار او عزت برقرار وساتۀ او د کرناټک په خوا کښې ئې په بنکاپور حکومت کولو - رکن عالم (یا حاجي میاں موسیٰ زئ) ته هم په دغه وجه اکثر و بیشتر د کرناټک د بالاګهاټ پښتنو دربار کښې لوے عزت حاصل وو." (خواجه سائل)

کړپه د کرناټک نن سبا د صوبه مدراس یو تاریخي ښار او صدر مقام دے[1] - ۱۱۹۹ء/ ۵۹۵هـ کښې باجوړ نه تر بلوچستان نوې ابادکارۍ کښې ښکارندوے - د جنوبي وزیرستان کاني ګورم (ګورم په معنیٰ د غرونو) کښې اباد شو - ددې ښار دوه برخې (۱) برشور (۲) لر شور[2] وۀ - ددې دواړو برخو ګېرچاپېره بې شماره زیارتونه دي - چې اکثر د خلیل مومند قام د خلقو دي[3] -

د بلاد غورات د ولایت میمنه د مرکزي ښار میمنه پخوانې نوم یهودیه وۀ - بیا میمنه او بیا جوزجان شو - کاني ګورم کښې د

[1] حوالې دپاره دیوان شاه میر ص ۳۳ طبع برقي پریس منګلور وګورئ.
[2] بر شور ، لر شور او د پېښور د اکبر بادشاه په زمانه پُر شور درې واړه نومونه هم قافیه ردیف دي.
[3] پټه خزانه ، قاضي اثر ، ص ۵۸

خلیل مومند مشرانو بې شماره قبرونه دي .د مومند بابا دو ښځې[1] خاتون اولاد ، کوکو ، مهیار او موسیٰ زي .د مومند بابا قبر په برشور کښې دے .د دوي مشر نیکهٔ پښتون دے .او بلوچ ئې نمسے دے.درېم قبر د مومند بابا په نوم قندهار کښې دے.

د قاضي اثر صيب ددې بیان متعلق زما خپل تحفظات دي :

۱۲۰۶ءکښې چې شهاب الدین محمد سام غوري شهید شو.نو د هغهٔ لاش پېښور ته راورسېدو .د امیرانو تر مېنځ اختلاف پیدا شو.

دې زمانه پېښور صدر چاؤنی ، ایډورډز کالج ، گورنر هاؤس، وزیراعلیٰ هاؤس ، جېل ، کچرې بلکې دا ټول ځایونه محض مېدانونه وو .چې د عسکري قوت اماجگاه وه .د ایډورډز کالج په مقام د شهاب الدین سام غوري جنازه دلته پرته وه.خو د مشرانو ترمېنځ اتفاق نهٔ راتلو .اخېر فېصله دا اوشوه چې د دوي لاش د تیراه په لار غزني ته ورسوي یا د تاترې په لار بامیان ته.په دې فېصله ځینې پښتانهٔ مشران خفا شو چې په دوي کښې حسن (یا حسېن) فرمل هم شامل وهٔ .څو ورځې پس فرمل بابا وفات شو. او د ایډورډز کالج پورته د سړک په غاړه ښخ شو .چې نن سبا ورته نو گزي بابا وائي .او تر ډېرې مودې دلته به مېله لگېده .چې مومند قوم به پکښې شامل وهٔ .ددې گواهي گوپال داسې په تاریخ ضلع پشاور کښې هم کوي.ولې د نن پېښورے مومند ددغه عظیم پښتون سپه سالار د حقیقت نه بېخي بې خبره دے چې د افسوس مقام دے.

---

[1] دوېمه ښځه بي بي دویه وه.چې مراد ترې دوبزي دي.

د فرمل سام حسېن او فرمل سام بنجي د علاؤالدين جهان سوز او ملک بهرام شاه په زمانه دوه بهادر جرنېلان وو . د اسد سوري په غزنه کښې قتل نه وروستو بهرام شاه غزنوي علاؤالدين سوري ته په سخت الفاظ وليکل . علاؤالدين غوري جواب ورکړو . " اگر تو پیل می آری من فرمل می آرم " د جنگ دوران دې دواړو ورونو د بهرام شاه دواړه هاتيان د سترګو په رپ کښې ووژل . او دغه جنګ پښتون علاؤالدين غوري وګټلو[1] .

1. چې د خېبر د تاترې خوا کښې په لار به باميان ته لاړ شو او هلته ئې د بهاؤالدين سام يعني د پلار په خوا کښې ښخ کړو .
2. دوېمه ډله په دې حق کښې وه چې د وادي کرم په لار غزني ته به لاش يوسو . او هلته به ئې ښخ کړو . د دوېمې ډلې وېنا منظور شوه . خو اولنۍ ډله پېښور کښې پاتې شوه . بله دا چې د کرم پاره چنار جاګير دار تاج الدين پلدوز به هم زمونږ امداد وکړي .

د ولايت مېمنه اميران په غوريا خېل مومند په نامه يادېږي[2] .

د قاضي عبدالحليم اثر د تحقيق يو خپل منفرد انداز دے . هغه چې يو خبر پسې شي تر هغه ئې نۀ پرېږدي چې لوستونکے ئې په لوستو ستړے شي . خو د دغه دليل منودو ته ونۀ رسي . د دوي

[1] چنګېز خان سره دوه مضبوط جرنېلان نوين جېبي او سوبيدائي وو . نو غوريانو سره حسېن فرمل او حسن فرمل دوه زبردست تکړه سپه سالاران وو .
[2] پټه خزانه ، قاضي اثر ، ص ۶۶

دغه منطق منودل زما ذهن که هر څو نهٔ مني . خو چار و ناچار به ئې منم . د مېمنه صوبې ټوله ابادي په ډېرش زره نفوس شامل ده . مېمنه د مزار شريف برخه ده او دلته اُزبک او ترکمان قبائل اوس اباد دي . زما په خيال د هغهٔ قياس د مېمنه او مومند ترمېنځ نومونو کښې لږ د مناسبت وجه ده .

# پټه خزانه د تاريخ په تله کښې

## از جمعه خان صافي

جمعه خان سره زما ملاقات يو زمانه يونيورستي بک ايجنسي پېښور کښې شوے وۀ چې د افغانستان د سرحداتو پخوانے وزير سليمان لائق ورسره هم وۀ ـ دغه ملاقات ډېر محدود او يو بل سره د پېژند ګلو تر حد وۀ ـ

د هغوي کتاب د غوري خاندان د شاهانو متعلق بيان دے ـ هغه ليکي چې ځينې مؤرخين پښتانۀ د مشرقي ايران تاجکان ګڼي ـ هغه وائي چې د غور حاکم شاهانو په سيستان او کرمان د سلجوقيانو برخلاف ځان ښۀ مضبوط کړو او د بلخ ترک اميران ئې خپل تابع کړل ـ د غور سلاطين تاجک يا تازيک (عرب نژاد) دي ـ د تازيک نه عرب نژاد مطلب دے ـ د عرب او فارسي منابعو مطابق د دريائے امو Oxus River او سردريا منځومانه خطه د اسلام د راتګ نه اګاهو د وسطِ ايشياء په نوم شهرت لرلو ـ د يونان په ژبه Transoxiana ـ د فارس مطابق تُوران او عربو ورته ماورالنهر وئيل ـ بيا ډېر وروستو دا علاقه د اُزبکستان ، تاجکستان ، جنوبي کرغستان او جنوب مغرب قزاقستان شول ـ د اسلام د راتګ وروستو خپل شجره نسب عربي النسل کول د ايران

و افغانستان په سیمه یو عام امر وۀ ـ عن چې د ضحاک د نسل سام و سور ئې د حضرت نوح د سام زوے سره منسلک کړو ـ او پټه خزانه چې د نعمت الله هروي د مخزن افغاني په اساس ده ـ د پښتنو د اصل نسل فرضي داستان د قیس عبدالرشید د اسلام د قبولیت سره پیوست شو ـ چې اوس دغه کتابونه د کوزې پښتونخوا د عالمانو په نزد جعلي او د دروغ ډک کتاب دے ـ زۀ خپل ځاني ددغه بحث نه ډېره کوم ـ خپل ځاني ددغه ډلې مشر قلندر مومند دلائل ځکه تسلیمولو ته تیار نۀ یم چې د قلندر مومند د پېدائش کلے بازید خېل د بهادر کلي په خوا کښې یو وړوکوټے کلے دے ـ

قلندر مومند پښتون نۀ دے بلکې د سپدانو د صاحبزاده کورنۍ سره ئې تعلق دے ـ د دوي پلار سېف الرحمان د مرزا غلام محمد معتقد شو ـ نور صاحبزادګان اوس هم سني مسلک سپدان دي ـ صاحبزاده اسلم شهید "اسلم پښتو" هم ددغه سپدانو کورنۍ وه ـ د پښتو او اسلام د قانون مطابق چې څوک حضرت محمد خاتم النبیین نه ګڼي د هغوي رشته د پښتون نسل نه خارج شي او په یو شکل ئې هم پښتون نۀ ګڼي او بیا په تېره تېره قادیانان څوک چې د ختم نبوت منکرین دي ـ

د حمزه صېب او قلندر تر مېنځ اختلافات ۲۳ ـ ۱۹۲۲ء ډېر زیات وو ـ زما ورځخه خیبر بازار کېسینو هوټل کښې د فرید صحرائي په ذریعه ناسته پاسته وه ـ فرید صحرائي د چارسدې وۀ او زمونږ کلي کښې پي ټي سي استاذ وۀ ـ قلندر د ډېر نوخېز شاعرانو استاذ وۀ ـ د نشتري ژبې خاوند وۀ ـ ژبه کښې ئې لکنت وۀ ـ خپله

درنه د بل سيکه ئي خاص عادت وۀ ـ د هغۀ يو ورور فيضي وۀ ـ د بل احمد ـ د غه احمد په مشن سکول کښې زما کلاس فېلو وۀ ـ دوي دواړه خپل کلي کښې وسېدل ـ يو زما نه قلندر د جي ټي ايس اډې څخه جوخت خوشحال کالوني کښې وسېدو ـ زۀ به چې ګورنمنټ کالج پېښور نه په دغه لار راتللم ـ اکثر به ورسره ملاقات کېدو ـ

د باړه مومند په علاقه درې کلو کښې قاديانان وسي ـ (۱) بازيد خېل ـ د قلندر ولد سيف الرحمان کورنۍ (۲) شېخ محمدي ـ د قيوم قادياني کورنۍ (۳) بډه بېر ـ د عبدالستار کورنۍ چې ما سره په کوهاټ کالج کښې ۲۲ـ ۱۹۲۴ء دوران استاد وۀ ـ وائس پرنسپل او پرنسپل وۀ ـ زمونږ د ډېرو پروفېسرانو ګروپ کښې شامل وۀ خو کمال دا وۀ چې د کوهاټ چاؤنۍ په يو ورکوټي جومات کښې مونږ د ماښام مونځ کوۀ ـ نو دے به باقاعده زمونږ امام پسې ودرېدو او زمونږ په شان مونځ به ئي کوۀ ـ ما ددۀ د مونځ باره کښې يو عالم نه تپوس کړے وۀ خو هغۀ زما په دې وېنا تسلي وکړه چې لاهوري فرقه قاديانان دومره انتها پسند نۀ دي لکه چې د غلام محمد مرزا نور پېروکار دي ـ

زما په خيال د ماؤنټ سټورټ الفنسټن نظريه په حقائق بناء ده چې د پښتو ژبې حامل ځان اول پښتون ګڼي او افغان نوم د وخت اوزماني جبر دے او پښتو سره ئي هېڅ مناسبت نشته ـ دغه غوريان اصل پښتانۀ دي ـ مارګينسټن ، بوزورتهـ ، ډوپرے ، ګِب ، ګرېشمن ، لانګ ورتهـ ډيمز نظريه د پښتو په ځاے افغان ده ـ د پښتو ژبې په مناسبت دا قوم پښتون دے ـ د پښتون په مناسبت ژبه

پښتو نۀ ده ـ د پښتو په وجه پښتون دے ـ د پښتو افغان سره هيڅ مناسبت نشته ـ افغان د مخزنِ افغاني ، فرشته او اخوند درويزه ايجاد دے ـ

"The Ghoride's language apparently different from their court language Persian. Sultan Masud of ghazni left for Ghoristan and sent his learned companions with two people from Ghor as interpreters between this person and the people of that region. However like the Samanids and Ghaznavids the Ghurids were great patrons of Persian literature, poetey and culture and promoted these in their courts as their own contemporary book writers refer to them as the Persianized Ghorids.

There is nothing to confirm the recent Surmise that the inhabitants of Ghor were originally Pashto speaking and claims of the existence of Pashto poetry from the Ghorid period and unsubstantiated[1].

د ګوډ تيمور په ذريعه هزاره خلق د غور و باميان علاقه کښې اباد شول ـ د هغۀ د زر عسکريانو د بريګيډ نوم هزار ، هزاره يامنګ وۀ ـ دا د عسکري قوت تعدادي نوم دے ـ د اصل نسل يا ژبې څخه تعلق نۀ لري ـ د جمعه خان صوفي دا خبره چې غوريان د فارسي ژبې او ادب سرپرست وو ـ نو دغه زمانه څۀ چې د پښتنو د نورو شاهانو په زمانه هم فارسي د يو ترقي يافته ژبې په اساس سرکاري ژبه وه ـ او پښتو د عام عوام ژبه وه ـ پاکستان کښې به

---

[1] د ګوګل انټرنيټ نه اقتباس

محض دوه فیصدي اردو ویونکي او صفر فیصد انګرېزان د نسل په لحاظ اباد وي-ولې د حکومت سرکاري او دفتري ژبه اردو او انګرېزي ده -او سندهي ، بلوچي ، پښتو او پنجابي ، سرائیکي ددغه اعزاز نه محرم ژبې دي-

د ګران استاد او زبردست مهمان نواز پښتون نباغلي پرېشان ختیک (مرحوم) دا شعرونه د هر پښتون د زړه اواز او ترجمان دي -د هغوي د "رنځوره پښتو" سرخط لاندي دا څو شعرونه ملاحظه کړئ-

پښتو چې تاج ورته په سر کړو نو غوري پرېښوده
چې هند ئې پښو کښې ورته کېښو بیا خلجي پرېښوده

د چا په ذهن کښې هم دا ناشونکي نه ځائېږي
لودي د تخت لاندي ډوبه کړه سوري پرېښوده

پښتو غریبه د خوشحال نه هم بکره پاتې شوه
خوند ئې ونکړو ابدالي ته په اسره پاتې شوه

مونږه په کومه خوله کوؤ به د پردو نه ګیله
ساه پکښې شته د ے خو پښتو په وینو سره پاتې شوه

**ماخذ "تناکې"**

د دریائے امو پورته او د اوسني تاجکستان ازبکستان ، قازقستان او نور اسلامي ریاستونو پورته علاقه جات د غربي

ترکستان او د چین د تاتاري علاقو تر حده شرقي ترکستان وو. د دریائے امو شرقاً بلخ ، مرو او د غور غزنه پورته حدودات خراسان[1] وۀ ۔ ۵۹۸ ق م کښې د بخت نصر په زمانه د بیت المقدس نه په زرګونو اسرائیل نسل قبدیان چې د حضرت سلیمان[۴] ۹۹۰ ق م تا ۹۳۰ ق م د سپه سالار افغنه کړوسے شالامو (شاؤمل) هم پکښې شامل وۀ ۔ ارمینیا ته منتقل شول ۔ دوي غرونو ته افغان وئیل ۔ دغه افغان ایران ته راورسېدو ۔ د ایران نه افغانستان ته منتقل شو ۔ د ایران د بادشاه شاه طهماسپ د قزلباش لښکر په امداد محمد همایون د دهلي په تخت قابض شو ۔ ایراني النسل خلقو دوي ته د پښتون په ځائے افغان وئیل ۔ د مغل په سرکاري دفترونو کښې افغان عام درج شو ۔ چې د بدقسمتئ نه دا سلسله اوس هم جاري ده ۔ د افغان په مناسبت افغانستان شو ۔ محض عام خلق ځانته پښتانۀ وائي ۔ روه (پښتنخا ، پښتونخوا) ده ۔ لرې نۀ ده چې د قومونو په صف کښې د یو علاقې خلق افغان او د بلې به پښتون وي چې دا زمانه د دواړو ارتباط ناممکن دے ۔ پکار ده چې عالمان ئې څۀ حل راؤکاړي ۔

---

[1] خراسان په معنی د نمر وطن (The Land of Sun) دے ۔ قدیم یونانیانو(Hellenic) او ایران (پارتیا) نژاد په تراکسیانه Traxiana یادوله ۔ د خراسان ژبه فارسي وه او یو زمانه د لوے اهمیت حامل علاقه وه ۔ اوس د خراسان څۀ برخه شمال مشرق ایران کښې شامل ده ۔ څۀ جنوبي تُرکستان ۔ افغانستان او ډېره برخه وسط ایشیاء کښې ده ۔ امام مهدي به د دجال خلاف دې ځائے نه توره جنډا پورته کوي ۔ کومه چې د دوي قومي نشان دے ۔ داعش (دعوت اسلامیه عراق و شام isis (اسلامي ریاست عراق و شام) هم ددغه راتلونکي واقعات مظهر تصور دے ۔

# نقلِ مکاني

۵۰۰ء کښې چې نمرپرست هُن ایران تس نس کړو او بیا د گندهارا په سیمه د مهرکله بربریت او دهشت اغاز شو نو سوات کښې د ښشي (ساکا) نسل اولاد او د گورائیوس (دریائے پنجکوړه) په غاړه اباد غوریان د دغه وحشي قوم د قتل و غارت ښکار شول. او دواړه لوے قبائل د غور و قندهار طرف ته فرار شول. غوریانَ خپل هم اصل غور و سور (گور ته ځان ورسوؤ. یوسف زئ و الشتان، بالشتان یا الشت کښې اباد شول. د دغه ځاے مرکز ئې د گندهارا / قندهار په نوم مشهور کړو او گوریان / غوریان د گورائیوس په غاړه اباد خپل اسلامي وطن غور ته منتقل شول. دوي دغلته د بامیان په مقام د گوتم بدهـ د غر دننه یوه لویه مجسمه د خپل عبادت دپاره تراش کړه. د غور په سیمه د سام و سُور اولاد او اخلاف د الزوري/ السوري شُونا. زُون یا زُونا عبادت فرض وگڼلو چې د نمر پرستۍ رواج وۀ.

د مهرکله دوفات وروستو تورمنه هم د دهشت بربریت او خوف زبردست علامت وۀ. د دوي عادت وۀ چې د جنگ دوران به ئې داسې چغې سورې وهلې چې د خپل دشمن فوځونه به ئې ویرې او خوف ځخه مخامخ کول.

د بهلول لودهي په فرمان د پښتنو مختلف سیمو نه د هجرت سلسله شروع شوه. وړې جتې زر راورسېدې. یوسف زي هم

د والشتان نه کابل ته راورسېدل ـ د امیر تیمور لنګ دوفات نه وروستو په کابل کښې د هغهٔ زوے شاه رخ مرزا ۱۴۰۷ء/ ۸۰۸ھ تا ۱۴۴۷ء/ ۸۵۱ھ بادشاه وهٔ ـ شاه رخ نه پس د هغهٔ زوے الف بېګ ۱۴۴۷ء/ ۸۵۱ھ تا ۱۵۰۲ء/ ۹۰۷ھ د کابل حکمران وهٔ چې د یوسف زئ په امداد او تعاون بادشاه شوے وهٔ.

د یوسف زي او مرزا الغ بېګ ترمېنځ ورانه راغله ـ او د ډېرو یوسف زو د قتل ۱۴۹۰ء کښې باعث شوه ـ یوسف زو کابل پرېښودو او د ملک احمد په مشرۍ کښې پېښور ته راورسېدل ـ دلاړاکو نه ئې د وسېدو دپاره څهٔ علاقه وغوښته[1] ـ او هغوي ورته دوآبه دانشکول، عنبر او باجوړ علاقه ورکړه ـ دغه زمانه ظهیرالدین بابر د فرغانه د بادشاهت نه د شیباني خان د لاسه بېدخل وهٔ ـ هغه کابل ته راؤتښتېدو او محمد مقیم نه ئې ۱۵۰۵ء کښې کابل واخستو.

بابر لیکي: مئی ۱۵۰۷ء/ ۹۱۲ھ کښې مونږ په دې اراده د کابل نه بهر راووتو چې ګوندې په خلجي قوم حمله وکړو ـ مونږ چې د سري دیهه په مقام پړاؤ شو ـ نو خبر راغلو چې مونږ نه لږ لرې د مشت اوسه کانه په مقام مومند پراتهٔ دي ـ زما خو تکړه او بهادر ملګرو ووې چې په مومندو ضرور حمله پکار ده ـ خو ما انکار وکړو او ښهٔ مې دا وګڼله چې مونږ دوي نه لار بدله کړو او هغه کار وکړو د کوم په نیت چې مونږ راوتي یو.

[1] په دې زمانه د خلقو تعداد کم او ځائیداد ډېر زیات وهٔ ـ خپل همدرد ته زمکه ورکول عام معمول وهٔ چې خان ته ګېرچاپېره لګه د شپول نژدې اباد کړي چې د سختی په وخت د یو بل پکار راشي.

۱۵۰۸ء کښې د مومند قبيلې د شورش او بغاوت خبرونه مسلسل رارسېدل ـ د سپرلي موسم وۀ چې ما د نغزک په خوا کښې اباد مومند قبائل باندې حمله وکړه ـ هغوي مو لوټ کړل او هغه ځاے نه راواپس شو[1] ـ

بابر د پښتون نسل د تباهۍ ذمه دار دے ـ هغۀ نۀ صرف د پښتونخوا د سيمې پښتنو سرونه قلم کړل او د هغوي د کوپړو مينارونه ئې جوړ کړل بلکې د هندوستان د پاني پت په مقام فتوحات نه وروستو د پښتنو ژوند تاريک شو ـ د هندوستان د فتح ځهره د ابراهيم لودهي د تربور دولت خان لودهي په سر ده چې عين د جنګ دوران ئې سازش او غداري ښکاره شوه ـ د بابر د قتل عام نتيجه وه چې پښتانۀ د سهسرام جاګيردار شېرشاه سوري ته ځان ورسوۀ او هغۀ ته ئې د بابر د ظلم دردناک داستانونه بيان کړل او د شېر شاه سوري په بدن او زړۀ ئې داسې اور بل کړو چې فيصله ئې وکړه چې د هر پښتو ن بدل به ضرور اخلم ـ او د ضحاک او سام و سور د نسل دې سپوت او بهادر امزري د چونسه په مقام محمد همايون په تېښته مجبور کړو ـ شاه طهماسپ د ايران بادشاه ځخه ئې پناه واخسته او شيعيت مسلک ئې اختيار کړو ـ ولې بل خوا د مغل نمک خوار خوشحال خان په فخريه انداز وائي :

بيا لـه پسه د دهلي بادشاه بابر شو
چې ئې کار د پښتانۀ په برکت وۀ

[1] بابر نامه ، جلد اول ، ص ۳۲۳

زما په خیال د ساکا قبائل یوه ډله چې د ګندهارا په سمه کښې مېشتهٔ شوه د غوریانو څخه په جوخت تعلق ئې پښتو زده کړه او د پښتنو په شمار کښې راغلل ـ د ساکایانو او غوریانو مرکز مساګا وهٔ چې د دواړو قبیلو دغه مرکز په ساک دره (چکدره) کښې وهٔ ـ د ساکایانو نسل د وسط ایشیا نه د روس خوا ته راورسېدل ـ دلته ځنې موده ایسارتیا نه وروستو یوه ډله سوات، دوېمه ساکوستانه، سجستان، سیستان او درېمه پهلوا ډله په ایران کښې سکونت اختیار کړو چې وروستو فارسي په پهلوي ژبه مشهور شوه ـ دغه زمانه سجستان د اردبیل د حکومت برخه وه چې کوم ساکا سیستان کښې مېشته شول ـ د زابلستان حکومت ماتحت شول او پښتون قوم کښې ضم شول ـ او لکه د سوات د ساکا قبائل په شان ژبه ئې پښتو شوه ـ د یونان ساکا د چین سؤک قبیله وه ـ

دے ډي مهاجن وائي: ساکا (سیتهین) پهلوا (پارتین او یوانه (باختري یونیان) دا درې واړه ډلې په هند د حملو په شمار کښې دي ـ سنسکرت کښې دا درې واړه برخې یعني یوانه، ساکا او پهلوا د بهر نه راغلل ـ دوي وحشي قبائل وو ـ د ساکا متعلق د دارایوس اول (٦٠٠ ق م) زمانه د سیکو پېسو په وساطت مونږ ته معلومات رارسېدلي دي او د نقشِ رستم په کتبات کښې دغه درې واړه ډلو ته اشارات موجود دي ـ

هیروډوټس وائي: چې ساکایانو پرتوګونه اچول ـ اوږدې مخروطي ټوپۍ په سر، دوي سره خپل ملکي غشي، لینده، خنجر او تبرونه وو ـ فارسي بانو دوي په ساکا نوم مشهور کړي وو ـ د وسط ایشیاء

دا وحشي قوم روس کښې د تور درياب Black Sea په ساحل
۸۰۰ ق م موجود وو۔ وروستو د افغانستان د هلمند غاړو او بيا د
کوه سپلمان لمنو کښې اباد شول[1]۔
سوات کښې دوي د شخے ، ساکا او وروستو د بالشتان (قندهار) په
نوم مشهور شول ۔او دغسې غورے د غور او شخے د والشت په نوم
گوروالشت مشهور شول ۔د سيکو تر مخه د دوي د څلور
بادشاهانو نومونه دادي۔ ماويس ، ازس ، زيليسز ، ازس[2]۔
د غوريا خېل متعلق مؤرخين ليکي چې دوي څو محدود کورنۍ د
قندهار او مېدان ته راکوزېدو نه وړاندې کوه قفس ( د غور غرونو)
کښې وسېدل ۔او دوي ددغه غرونو سلسلو کښې داسې بند پراته
وو لکه يو مارغۀ چې پنجره کښې قېد وي ۔دوي ددغه بند غرونو نه
د قندهار سوئېل طرف ته د ارغنداب ترنک سيند په غاړه د مقر او
قره باغ علاقو ته راکوز شول ۔دلته د غوريا خېل دغه محدود ډله
شخيانو (يوسف زو ) سره په جنگ اخته شول ۔يوسف زي شکست
وخوړو ۔او کابل طرف راؤتښتېدل ۔دغه زمانه مرزا الغ بېگ د
ماورالنهر نه کابل ته راورسېدو ۔يوسف سردار ملک سلېمان شاه
ئې امداد وکړو او کابل ئې ورله قبضه او حواله کړو ۔خو د ملک
سلېمان شاه او مرزا الغ بېگ تر مېنځ ورانه راغله ۔د جنگ دوران
ډېر يوسف زي قتل شول ۔د ملک احمد په مشرۍ کښې يوسف زي
پېښور پلؤ ته روان شول ۔او دلاړاک ورله دوآبه ، دانشکول ، عنبر او

---

[1] Ancient India by V.D Mahajan p 415

[2] تفصيل دپاره وگورئ ، گورې اسپې ، ص ۵۳ او ۱۳۲

باجوړ علاقه جات ورکړل ـ د قندهار په سیمه څهٔ موده پس د خلیل او مومند تـر مېنـځ ورانـه راغلـه ـ دې جنـګ کښـې داؤدزي[1] هـم د خلیـل ملګري وو خو شکست ئې وخوړو ـ دوي هـم د کابـل پـه لـور راروان شـول ـ او خلیـل داؤدزي د دریـائے کابـل شـمالي غـاړې اباد یوسف زئ لـه راورسېدل ـ یوسف زو دوي تـه د کلپـانۍ او بګیـاړې علاقه حواله کړه ـ

د پټه خزانه مطابق : شـیخ کتـه بـن شـیخ یوسف بـن متـي ـ د شـیخ کتـه د مـور نـوم بـي بـي مـراد بختـه وهٔ چې زمنـد قـوم څخـه ئې تعلق وهٔ ـ د شېخ متـي د وفات کال ۱۳۰۹ء/ ۷۸۸ هـ ښودلے شي او د شیخ کته د وفات کال ۱۳۷۱ء/ ۷۵۰ هـ ښودلے شي ـ د شـیخ کتـه د کتاب ماخذ د علي بن محمد البستي ''تاریخ سـوري'' ښودلے شي شیخ متي بن عباس بن عمر بن خلیل[2] ـ

د شیخ متي خلیل درې زامن وو ـ کند ، زمند او کاسي

د یوسـف زي خلیـل او داؤدزي پـه هجـرت هغـه غوریـا خېـل چې د ارغسـتان[3] (قندهار) په سیمه موجود وو پښـېمان شـول او دوي

---

[1] د داؤدزي د اسلاف پته ماته تر اوسه معلوم نهٔ شوه ـ البته د شېخ کته په واسطه د خلیل څهٔ لږ ډېر معلومات موجود دي ـ

[2] خاتمهٔ دیوان قلمي ۱۲۳۰هـ میا نعیم متي زي خلیل ، ص ۲۲۲

[3] د نعمت الله هروي مخزن افغاني او بیا وروستو د پټه خزانه لوست څخه بربښي چې ارغسان یا ارغستان د زیات تر پښتنو د ذیلي شاخونو د مېشت اماجګاه او د بود و باش مرکز وهٔ ـ حالانکې پښتانهٔ افغانستان کښې په ډېرو ولایتونو کښې سکونت لرهٔ خو پښتو لیکونکو دغه پلو خپله توجه ګرزولې نهٔ ده ـ ډېر داسې پښتانهٔ دي چې محض د پښتو ژبې په وېنا ځان پښتون بولي ـ ولې په اصل پښتون نهٔ وي ـ

هم کابل پلؤ راروان شول ـ یاد ساتل پکار دي چې د غوریا خېل لویه ډله د غور په غرونو کښې مېشتهٔ وه ـ او دا هغه غوریا خېل وو چې د ارغستان قندهار په علاقه مېشتهٔ شو ـ چې د تذکرة الاولیاء افغان لیکونکے سلېمان ماکو هم پکښې شامل وهٔ ـ

د غوریا خېل نور قبائل جوېې په جوېې د بهلول لودهي په فرمان د کابل په لور راروان شول ـ

د نعمت الله هروي د مخزن افغاني خود نوشت کتاب ۱۲۴۲ء/ ۱۰۲۱هـ وروستو پته خزانه لیکلے شوې ده او کوزه پښتونخوا کښې د ډېرو لیکوالو تر مخه متنازعه فیه ده ـ خو بیا هم دا کتاب یو افسانوي انداز لري ـ او ممکن ده چې ډېر معلومات درست وي او مونږ دغه صحیح معلومات نه فېض یاب یُو ـ

تاسو ولوستل چې دلازاک یوسف زو له د باجوړ علاقه هم ورکړې وه خو ددغه ځاے دلازاک مشر ملک هیبو باجوړ پرېښودو ته تیار نهٔ وهٔ ـ خلیل او یوسف زي ملک هیبو څخه په جنګ شول ـ ملک هیبو دلازاک قتل شو ـ

ددغه جنګ نه چې کابل و لغمان کښې ترکلاني او مومند خبر شول ـ نو یو لوے وفد د ترکلاني مشر ملک سرخابي او د مومندو مشر ملک ګکهر د راضي نامې په غرض راغلل ـ خو ملک هیبو پخپل ضد ولاړ وهٔ او اخېر کار قتل شو ـ دا واقعه د ۱۵۱۷ء/ ۹۲۳هـ ده ـ

خلیل ته لاشوره نه تر هندو راج او چارمنګ نه تر ناوګی علاقه حواله شوه ـ د خلیل او یوسف زي اتحاد هم قائم پاتې نهٔ شو ـ

د یوسف زي میر جمال او د خلیل پائي بن سالار خلیل د اسونو کاروبار سلسله کښې ورانه راغله۔او ذاتي جنګ د قبیلوي جنګ شکل اختیار کړو ۔ابتداء کښې خلیل یوسف زي شکست سره دوچار کړل۔ (وګورئ ګورې اسپې ، ص ۴۲۲)

دا هغه وخت وۀ چې د مومند Madhumant (رګ وېدا) قوم د هجرت تسلسل روان وۀ ۔خلیل مضبوط قوم وۀ او یوسف زي تري په ویره وو۔او بله دا چې مومند نه هم ویرېدل ۔خو هغوي دې ټول واقعات نه بې خبر وو ۔د یوسف زي او خلیل تر مینځ دوباره د چارمنګ په مقام جنګ وشو چې خلیل پکښې شکست وخوړو۔او ډېر کمزوري شول ۔مومند له راغلل او مومند ورله دغه موجود علاقه حواله کړه ۔یوسف زي ددې جنګ د فتح نه وروستو ډېر مضبوط شول او د غوریا خېل دلاسه بې سرو سامان راتښتېدلي یوسف زي د یو لوے ملک خاوندان شول۔

لرغوني سرې پوښتي
د یوسف زو وو کوم ملکونه
ملک ئې نشکے قېنه ګاړکے
غوریا خېل که تر اوسه پېغورونه
غوریا خېله ، پېغور مۀ کړه
تۀ خښے یشئ سره ورونه
خښے ستا له لاسه راغے
هله تۀ زوره ور وے په مړونه[1]

[1] تاریخ حافظ رحمت خاني ، ص ۵۴

دغوریا خېل یوسف زي په قندهار کښې جنګ ، د یوسف زي ګګیاني مخالفت د خلیل مومند قندهار کښې ورانه ، د خلیل یوسف زي اتحاد او دشمني ـ د داؤدزوي په کلپانئ او بګیاړي سکونت او وروستو د یوسف زو راشړل ـ د دلزاک یوسف زي اتحاد او د خلیل مخالفت او د پېښور په سیمه د یوسف زي او ګګیاني اتحاد داسې واقعات دي چې د یو فرضي داستان نه وراخوا ګورے که د حقیقت په تول پوره وي ـ خو ممکن ده چې د راهداری سرسبز زمکو قبضه او تجارتي مفادات عوامل د دوي تر مېنځ د تریګنی باعث وي ـ چې د ټولو قبیلو نه زیات پکښې غوریاخېل متاثر شول ـ د دریائے سندھ پُل د اکوړ خان او اخلاف زوزدستي او قبضه جات د رنجیت سنګھ د خالصه دیهات قیام د غوریا خېل مضبوطه قبیله مومند کمزوري کړل ـ د یوسف زي بابر ښځه دوستي او د شاه منصور[1] لور بي بي مبارکه (افغاني آغاچه) بابر ښځه وادۀ وه ولې بل اړخ د مومندو د پېغلې حامد بخاري ښځه د وادۀ انکار او دغه سلسله کښې د زرګونو مغل لښکر قتل ـ

د قزلباش شیعیت لښکر مدافعت او د کامران ملګرتیا:

د جارنده (فرید مومند) د لاسه د محمد همایون مرستیال ورور مرزا هندال قتل داسې عوامل وو چې غوریا خېل مومند ئې

[1] بابر چې ابراهیم لودهي ته شکست ورکړو ـ نو د هغۀ خزانه او مال و اسباب د قبضې دپاره ئې محمد همایون خواجه کلان ، شاه منصور (یوسف زي) اګرې ته او جنېد برلاس دهلي پلۆ ولېږل ـ دا هغه جنېد دے چې شیرشاه سوري سره سم وسوزېدو ـ د والي سوات په ایماء "هندوستان" پښتو ص ۴۴۸

زبون حال کړل ـ او مغل نه علاوه د سکهانو او انګرېزانو بربريت د بارړه مومند قبيلې د زحمت او پرېشانۍ باعث شول ـ د غوري قبائل ذکر په اول ځل د محمد همايون د خور ګلبدن بېګم "همايون نامه" نومې کتاب کښې راځي ـ او وروستو بار بار استعمال کېږي ـ

مخزن افغاني د مومند د پلار نوم دولت يار ښائي ـ بي بي دويه ئې اولنۍ ښځه وه ـ او دا د شيخ سليمان دانا لور وه چې د مومند ښځه وه ـ دويمې ښځې نوم ئې بي بي پياري وه ـ ولې بل ځاے بي بي خاتون ياد بږي ـ

د علي زئ بن سړه بن دوه زامن وو ـ معروف او بهاؤالدين د معروف څلور زامن وو چې د يو نوم بازي خېل وۀ ـ د بازي خېل دوه زامن مېرخېل او پير خېل وو ـ د مير خېل دوه زامن ملک رهي او ملک کري وو ـ د يو بل مؤرخ مطابق کري د مومند پلار وۀ ـ

وائي چې د اکبر په زمانه د کابل ګورنر حامد بخاري (د مخزن افغاني مطابق سيد حميد) وۀ ـ حامد بخاري غوښتل چې د ملک حيات خان لور سره واده وکړي ـ مومندو ددې رشتې پېشکش خپل توهين او تضحيک محسوس کړو ـ خو دغه سيد حميد پخپل ضد ولاړ وۀ ـ اخېر کار ملک حيات صلاح شو او چې کوم وخت جنج راغلو ـ نو مومند پښتنو نۀ صرف سيد حميد (حامد بخاري) قتل کړو بلکې په زرګونو جنجيان ئې هم قتل کړل ـ اکبر چې دې واقعات نه خبر شو ـ يو زبردست لښکر ئې د پښتنو د تباهۍ دپاره راؤلېږلو ـ خو دوي غرونو پلۀ فرار شو ـ دغه زمانه ملک رهي پېښور کښې موجود وۀ ـ اخېر کار د مومندو او اکبر

پادشاه تر مېنځ د ملک رهي په ذريعه صلح لاس ليک شوه او مومند بېرته پېښور ته راغلل[1].

د غور د سام و سور نسل اصلي صفا پښتانهٔ وو. جنګجو قبيله وه .او ضحاک نه واخله د شجاعت خان سور او د اکبر په زمانه باز بهادر ولد شجاعت خان پېښه د جنګ مېدان کښې د بهادرۍ او عسکري قيادت اعلیٰ شهسواران او سرداران وو. خو بل طرف د شېخ متي [2] کورنۍ يوه علمي او غالباً د سېدانو کورنۍ وه .دغسې د شېخ کبير بن شېخ اسماعيل کورنۍ او شېخ امام الدين (وفات ۱۲۸۱ء/ ۱۰۲۰هـ يا شېخ قاسم د خليل قوم د پير و مرشد اولاد وهٔ .د پښتنو او سېدانو په شجره انساب کښې فرق دے خو مؤرخين دا دواړه کورنۍ د پښتنو په حساب کښې شماري .د خليل داؤدزي او مومند يعني غوريا خېل کښې ډېر درانه پښتانهٔ موجود دي .دوي کښې چې څومره خانداني خلق دي .او د هر خاندان مشر خان بللے شي .د سور و سام کورنۍ او نسل څخه ئې تعلق وي .د تاتاريانو د فتوحات نه وروستو د خان لقب عام شو .د ترک النسل غزنوي سلطنت په خاتمه غوري النسل کښې د خان کلمه سور سام څخه مخصوص شوه .د مغل انګرېز دوران حکومت دا اعزاز صرف پښتون او د حکومت وخت اهکارو څخه مخصوص شوه .معاشره په درې ډلو وېش وه .(۱)پښتون (۲) نور اعلیٰ ذات

[1] مخزن افغاني ، ص ۸۲ ، ۲۸۱

[2] د شېخ متي او پيرانوشجره انساب د هغوي ذاتي نسب نامې دي.د پښتون ذات خليل يا داؤدزي شجرات نهٔ لري.

نسل (۳) کمین ذات ـ کمین ذات د خان لفظ استعمال نه محروم وو ـ
د پاکستان جوړېدو وروستو د سرکاري ریکارډ په سطح کیټیګري
III دپاره د خان لفظ استعمال ممانعت ختم شو ـ نتیجه ئې دا ده
چې د زمکې په سر جنګ جدل عام شو ـ افراتفري ده ـ کمین ذات
پخپله بدمعاشۍ د شرافت خاوندان ختموي ـ دو نمبري خلق د
اسمبلۍ مشرانو ، او د عام عوام د بې عزتۍ مجرمان شول ـ د جرګو
مشران بدمعاشان شول ـ تهانه تحصیل د دوي ماتحت شول ـ د
جمهوریت لعنت دوي ته مزید تقویت ورکړو ـ کنځل ، لوټ مار ، د
کمزور او شریف بې عزتي عام معمول دے او هم دا زمونږ د
انحطاط باعث اعمال دي ـ

غوریا خېل پښتنو د ضحاک نه تر دې دمه پښتو ژبه
ژوندۍ وساتله ـ د پېښور د زمکو مالکان غوریا خېل وو ـ د غوریا
خېل مېداني مومند علاقه سرسبز و شاداب ده ـ شل میله اوږده او
دولس میله پلنه پرته ده چې د خالصه او خېر اباد دریائے سندھ
پورې په علاقه هندکیان او خټک قبائل اباد شول او انګرېزانو د
سام و سور د اولاد بالادستي د خپل مخصوص مفادات دپاره بېخي
ختم کړه ـ د بنده بېراګي د ظلم نه د لنډها ژبې ویونکي پېښور
کښې پناه واخسته ـ د پېښور ښار ټول کاروبار د هغوي په لاس شو ـ
د انګرېزانو په دور ډېر خلق ښاریو ته منتقل شول ـ د ښار خوا کښې
د هزارخانۍ او بهادر کلي د قبرستان دپاره وقف جائیداد باندې
قابض شول ـ بارک زي وزیر فتح خان پدغه وقف جائیداد وزیر باغ
جوړ کړو ـ د پاکستان په جوړېدو ډېر خلق پېښور کښې اباد‌ېدل

شروع شول۔ د کروړونو روپو مالک محلونه جوړ کړل هدیرې ئې نه وې۔ د ګندګۍ دپاره یو ګنده ډهېر وۀ۔ هلته پولي ټیکنیک کالج جوړ شو۔ د قبرستان په نوم اپرېشن او بیا دغه قبرستان کښې ګندګي غورزول عام شول۔ پردو زمکو کښې خپل مړي ښخ کړي او وائي۔ "ہم نے اپنے میت کو اپنی آبائی قبرستان میں دفن کیا"
د انګرېزانو د سازش برکت وۀ۔ چې پټواریانو ته هدایت وۀ چې د ۱۸۷۰ء۔ ۱۸۹۵ء او ۳۰۔ ۱۹۲۹ء د بندوبست دوران چرته چې دوه قبرونه هم وینئ۔ ورته مقبوضه اهل اسلام لیکئ۔ مالک که تکړه وۀ نو د بندوبست وروستو به ئې خپل قبرستان "مقبوضه مالکان" کړو۔ د انګرېز چال وۀ چې دغسې به اصل اراضي او غېر خلق خپلو کښې ونخلي او مونږ ته به ئې فائده ورسي خو کوم کار چې انګرېز ونکړو ۔نو د پاکستان حکومت د ۱۹۷۲ءPLD د فېصلې مطابق سرانجام کړو ۔او د سپریم کورټ یو جج ورته مزید تقویت ورکړو ۔نن حال داد ے چې څوک هم رضاکارانه طور د قبرستان دپاره زمکه نۀ وقف کوي ۔حکومت ئې هم په بندوبست نۀ پوهېږي ۔خو مړي دي چې یو بل دپاسه ئې ورتهومبي ۔د افغان مهاجرین هجرت مزید حالات خراب کړل۔ پېښور کښې د قبرستان په نوم احتجاجونه وي۔ اصلي مالک کم قوت د ے۔د بهر راغلي خلق د غوریا خېل د کمزورۍ او اسلام څخه میني نه فائده پورته کوي زمکه د هزارخانۍ (بشمول بهادر کلي) ده[1]۔ولې قبضه ګروپ

[1] تذکرہ نمبر ۳ باکرام۔

ئې په زبردستۍ قبضه کوي او خرڅوي ئې ۔اصلي مالک د هزارخانۍ وسېدونکي محض تماش بين دي ۔ مختلف غېر ذات د پښور په غور خېل سيمه اباد شول ۔او د ضحاک نسل کۀ ډېر اوچت بادشاهانو د جنګ په مېدان کښې زېر نکړل۔ دغه ناجائز قابضين به ئې ډېر زر ختم کړي۔د بل په جائيداد تصرف نۀ صرف ناقابل معاف جرم دے بلکې د اسلامي احکاماتو او روایاتو ماوړیٰ عمل دے ۔د حکومت فرض دي چې هاؤسنګ سوسائټيز په دې امر مجبور کړي چې هر کالونۍ سره خپل قبرستان او د ګندګۍ ډېران وي۔ بدمعاشان او لوفران د جرګو مشران شول۔د هزارخانۍ او بهادرکلي او نور ډېر کلو زمکې د پراپرټي ډيلرانو په ذريعه درې مرله نه تر کنال د بهرنو خوشو خوشاتارو په لاس شوې ۔پينځه شپږ لس منزله مکانونه ساز شول ۔خو نن پښور د اديرې او ګند ډهيران نۀ لري ۔شاملات د زمکې د اصلي مالک حق وي ۔خو دوي بِلا ملکيت اراضي کښې ځان د شاملات حقدار لري ۔د پښور ښار خواؤ شا اباد غوريا خېل چې اوس په کوم حالات کښې وخت تېروي لرې نۀ ده چې ضحاک نه تر دې دمه بهادر پښتون مزيد خپل حېثيت، مردانګي او پښتو نيت برقرار وساتي ۔د پښتو اعلیٰ اقدار ختمېږي ۔د سام سُور اولاد مخ په زوال دے ۔د غوريا خېل شان و شوکت ختم دے ۔د شېر شاه سوري ، دلاور خان غوري ، شجاعت خان سوري او د باز بهادر عشقيه شاعري محض افسانې ښکاري ۔د امير محمد سوري غېرت د علاؤالدين جهان سوز مړانه، د محمد غوري په هند کښې د اسلامي سلطنت قيام متعلق

نور پرېږده ۔خلیل مومند داؤدزي ترې هم خبر نۀ دي ۔د پېښور
علاقه ئې چې د زرګونو شاه زلمو د قربانۍ په برکت قبضه کړې وه
په هغه مقدس زمکه نن جوارګر ، شرابیان ، زناکار ، منافقان ،
قبضه ګروپ، ناجائز منافع خور ،دهشتګرد ، غلاګرکي ، قاتلان ،
ګنګپان او بدمعاشان پراپرټي ډیلران اباد دي ۔حال داد ے چې د
پېښور خواؤ شا سرسبز و شاداب زمکه بې ډوله ابادۍ کښې ختم
شوه ۔ما څو وارې د حکومت واکداران د خښتو د بټو د نقصانات
نه اګاه کړل ۔ولې د هغوي غوږونه بالکل ونۀ ګرېدل ۔هر کس
غواړي چې پېښور کښې د درې مرلو خاوند شي ۔دا سلسله که دا
شکل جاري وه نو ډېر زر ده چې پېښور کروناوائرس نه زیات د
مشکلات او تباهۍ ښکار شي۔

زمونږ یو ملګر ے د اچیني وسېدونکے مرزا عبدالرشید وۀ
په جوسه سپک او کمزور ے وۀ ولې په زړۀ ډېر دلېر وۀ۔د محکمه
تعلیم ډائرېکټر او سیکرټري څخه بِلا خوف جواب ورکول د هغۀ
عادت وۀ ۔د بارہ ګېټ دننه ئې یو محله کښې څو مرلې زمکه
واخسته او په دغه زمکه ئې کور اباد کړو ۔څو ورځې پس ماته د
مازیګر په چایو کښې دعوت نامه وصول شوه ۔حېران شوم چې
مرزا صېب د شائي لاګ یهودي قبر په لټه ووهۀ او د حاتم طائي
معتقد شو۔خېر مازیګر زۀ هم هلته ورسېدم۔چائے وڅښلې شوې
او مرزا صېب حاضرین مجلس ته مخاطب شو ۔هغۀ ووې : ''کورئ
زما کلے د لنډي اخون محمد نه بره پروت د ے ۔کۀ مړ شوم نو هلته
زمونږ د کورنۍ لویه هدیره موجود ده۔زما ارشه درشه ، تعلق او ښۀ

بد اوس تاسو سره ترلے دے ۔د نوي کلي چوک ته مخامخ وسیع و عریض میدان پروت دے ۔مونږ که خپلو کښې چنده واچوو او دلته د قبرستان دپاره څو مرلې زمکه واخلو نو ښۀ به وي ۔تجویز ډېر ښۀ وۀ ۔ددغه محلې ټولو مشرانو ورسره اتفاق وکړو ۔چنده راغونډه شوه او دغلته ئې قبرستان دپاره زمکه هدیه کړه ۔لکه د نور ډېر اهل محله مرزا عبدالرشید چې وفات شو هم دغلته ښخ شو ۔زۀ چې کله یونیورسټي یا سربند ته څم ۔نو زما ذهن کښې د هغۀ پُر وقار تقریر راياد شي ۔او لاس مې هغۀ ته په دعا پورته شي ۔

د مرزا صیب د مشرۍ لور "رشیده" په وادۀ د ډاکټر فیروز شاه ریمارکس اوس هم زما غوږونو کښې ګرنګیږي ۔وې زۀ په اول ځل د مرزا صیب په کور کښې ډوډۍ خورم ۔تاسو خو به ډېر ځل خوړلې وي ۔ما ډاکټر صیب ته ووئېل ۔چې ډوډۍ او مرزا صیب نه خوړل ۔ډاکټر فیروز شاه ډېر زیات خوش طبع انسان وۀ ۔د ډاکټر کبیر استاد وۀ ۔او ډاکټر کبیر زمونږ خپلوانو کښې شمار وۀ ۔

دا دومره اوږد تمهید مطلب مې دا دے چې پېښور کښې د کروړونو روپو محلونو مالکان ولې د بل په قبرستان کښې خخیږي پکار ده ځان له د قبرستان بندوبست وکړئ چې پښتون ولي ئې قائم پاتې شي ۔

# شېرشاه سوري

تاریخ فرشته لیکي: "د سلطان بهلول لودهي په زمانه د
حسن خان سُور پلار او د فرید خان (شېر شاه سوري) نیکهٔ ابراهیم
خان هندوستان ته راغلو - د سلطان بهلول یو سردار سره نوکر شو -
ځو ورځې په حصار فیروزه او څهٔ موده نارنول کښې مقرر وهٔ - د
بهلول لودهي د وفات وروستو د سکندر لودهي د جونپور حاکم
امیر جمال خان سره متعین شو - امیر جمال د خپل زور ملازم
ابراهیم خان زوے حسن خان سوري د پنځوسو سورو افسر مقرر
کړو - او سهرام، خواص پور او د ټانډه جاګیر دار ئې مقرر کړو -
دا کورنۍ د روه د پښتنو د نسل نه وه - روه د لمبائي په
لحاظ سوات یا جوړ نه د سبوی بهکر او په چوړایي حسن ابدال نه
تر کابل علاقه ده - د پښتنو په ډېرو خیلونو کښې یو د سُور یا
غوري قبائل دي - او دا د غوري بادشاهانو اولاد دے - دوي کښې
یو روایت مشهور دے چې پخوا زمانه محمد سوري روه ته راغلو -
د روه یو خان ورله لور ورکړه - ددهٔ اولاد ته سوري وائي - دوي ځان په
پښتنو کښې غوره ګڼي -
د حسن خان اتهٔ زامن وو - دوه زامن د پښتنې ښځې نه او
نور د وینځو زامن وو - د پښتنې ښځې دوه زامن فرید او نظام وو - د
حسن فرید خان خوښ نهٔ وهٔ - امیر جمال خان له جونپور ته ورغلو

چې زما زوے په دم دلاسه راواپس شي او هلته سبق ووائي ـ خو هغهٔ د امیر جمال نصیحت په غوړ وو اووهلو ـ او راضي نهٔ شو ـ څو کاله پس بیا وریسې پلار جونپور ته راغلو او خلقو د پلار زوے صلح وکړه ـ فرید خان چې واپس سهسرام ته راغلو ـ پلار په خپل جاګیر نګران مقرر کړو ـ هغهٔ د جاګیر انتظامات اعلیٰ اقدامات وکړل او پلار د هغهٔ نه ډېر خوشحال شو ـ

د حسن خان د وفات وروستو مېرنو ورونو سره وران شو ـ د جونپور حاکم سلطان محمد خان هم تري لاس واخستو ـ او د هغهٔ حاکم محمد خان سور هم ورسره زياتے راواخستو ـ دا هغه زمانه وه چې بابر د ابراهیم خان لودهي خلاف جنګ کښې کامیاب وهٔ ـ هغه د بابر بادشاه یو حاکم سلطان جنېد بر لاس سره دوستي پېدا کړه او د هغهٔ د لښکر په امداد ئې خپل جاګیر قبضه کړو او محمد خان رهتاس ته فرار شو ـ

یوه ورځ چې شېر خان د سلطان جنېد په دربار کښې موجود وهٔ ـ پته ولګېده چې برلاس (یمعنیٰ د بهادر ، تکړه) د بابر بادشاه سلام له روان دے ـ دے هم ورځخه ملګرے شو ـ او د بابر بادشاه په حضور کښې پېش شول ـ بادشاه شېر خان سره مهرباني وکړه او پخپل نوکرانو کښې ئې شمار کړو ـ د څند ورځو په سفر کښې د بادشاه ملګرے شو ـ هغهٔ دغه دوران د مغلو ډېرې کمزورۍ ولیدلې ـ شېر خان ولیدل چې د حکومت ټول کاروبار د هغهٔ د نااهل وزیرانو لاس کښې دے ـ او دغه رشوت خوارهٔ دي ـ خو بل خوا دا ئې هم لیدل چې پښتنو تر مېنځ زبردسته بې اتفاقي ده ـ وائي چې یوه ورځ په شاهي

درستخوان د شېر خان مخکښې مهے (کب) پروت وۀ ـ مهے ئې ټکړه ټکړه ښوروا کښې ګډ کړو ـ او په ځمڅه ئې په حملو حملو خوړو ـ بادشاه بابر مير خليفه ته ووې چې دا پښتون خو څۀ عجيبه کارونه کوي ـ د بابر مطلب د شېر خان د لياقت اظهار وۀ ـ خو شېر خان دا اندازه ولګوله چې ګوندې بابر زما په حرکات بدګمان شو ـ شپه په شپه راؤتښتېدو او ځان ئې خپل جاګير ته راؤرسولو ـ

دا شېر خان وۀ چې ۱۵۳۹ء کښې ئې د چونسه په مقام د همايون يو لوے لښکر ته شکست ورکړو ـ همايون د مېدان جنګ نه وتښتېدو ـ ايران ته ورسېدو ـ شيعه مسلک ئې اختيار کړو ـ شاه طهماسپ ورسره تقريباً څلور زره لښکر کړو ـ کامران نه ئې کابل فتح کړو ـ غوري قبائل د شيعي مسلک د لښکر زبردست مزاحمت وکړو ـ د شکست باوجود ئې بيا بيا کامران مرزا د کابل په تخت سرفراز کړو ـ خو يو اړخ د ايران منظم لښکر او د کامران کمزوري وه بل طرف د مُغل او ايران دوستي د هند په سيمه پښتون قيادت ته زبردست نقصان ورسوۀ ـ

شېر خان د عسکري چالونو واقف بادشاه وۀ ـ د هند په فتح کښې که يو خوا قسمت د هغۀ ملګرے وۀ ـ نو بل خوا د فوځي چالونو صلاحيت ئې لرلو ـ د کالنجر د قلعه د محاصرې په وخت د بارود ډک يو ټيم د قلا د دېوال سره ټکر نه واپس نور ډک بارود ټيمانو ته راورسېدو ـ او اور ئې واخستو ـ شېرشاه سوري ، شېخ خليل ددۀ پير مُلا نظام او دريا خان سرواني وسوزېدل ـ شېر شاه بې هوشه شو ـ څۀ وخت له چې په هوش کښې راغے نو اواز به ئې وکړو

چې قلا درنه پاتې نۀ شي ـ کارونه د خدای وو ـ چې ماښام کېدو. نو يو خوا قلعه فتح شوه ـ او بل خوا دا بهادر او ځوانمرد بادشاه وفات شو ـ دا واقعه په ۱۲ ربيع الاول ۹۵۲هـ / ۱۵۴۵ء واقع وه. شېر شاه پينځلس کاله خاني او پنځه کاله د هندوستان په اکثر علاقو بادشاهي وکړه ـ

Fayyaz Mahmud writes:- "The fort surrendered at the same time and the news was brought to his death bed. He died happy in the knowledge that the last Hindu stronghed in north India was now in Muslim hands[1]."

شه الله باقی ترا باد دائم
هماں شیر شاہ بن حسن سُور

د شېر شاه د فتح او په بارود سوزېدل کښې د هغۀ پير شېخ خليل هم شامل وۀ ـ چې د شېر شاه سوري معاصر وۀ ـ ددۀ يوه لور بي بي متو د سرهند د ګورنر خضر خان المعروف اسلام خان ښځه وه ـ د اسلام خان د وفات نه پس د اسلام خان کونډې متو د پښتنو اهل و عيال سره د دهلي قلعه ته ننوتل ـ دوي سره نارينه لږ وو نو بي بي متو زنانه ؤ ته د نارينه ؤ جامې ور واغوستل چې سړي زيات ښکاره شي ـ سلطان بهلول ته چې د محمود شرقي ددې محاصرې خبر ورسېدو ـ نو دۀ د خپل اميرانو په صلاح د روه پښتنو د مشرانو په نوم په دې لاندېني مضمون فرمانونه وليکل[2] ـ

---

[1] A short history of India by S.Fayyaz Mahmud p. 513

[2] د بهلول لودهي د روه پښتنو په نوم فرمان شېرشاه سوري از عباس سرواني.

د نعمت الله هروي د مخزن افغاني مطابق : " شیخ متی خلیل کو سب اپنا پیر و مرشد اور سردار مانتے تھے۔ ٦٨-٥٦٧" شیخ په معنی پیر و مرشد ، پیشوا، مسلمانانو کښې یو ذات. غلزي ولد بي بي متو بنت شیخ بیټ بن شرف الدین (شرخبون) بن قیس عبدالرشید یا شاہ حسین کی شیخ بیټ کی لڑکی متو سے محبت پیدا ہو گئی۔

د خلیل قوم مشر ضمن کښې د بي بي متو ذکر ځینې وخت د زنانه او ځینې ځایه د نارینه په شکل کښې لیکلے شي. چې زۀ خپل ځاني دغه مطلب ته نۀ رسم. تحقیق غواړي. د نعمت الله هروي مطابق : "ملک احمد بن ملک عنبر بن ملک علي بن ملک اچک بن ملک یوسف بن ملک اسحاق بن ملک عمر بن پرنکي بن سیائي بن لودهي بن متو[1] ".

د میا نعیم متي زي په دیوان کښې د دیباچې ضمیمه کښې خیال بخاري د متي او پېرانو شجره نسب یو ځاے ښودلے دے چې غلط دے. د شیخ او پیر امتزاج د حقیقت برعکس ده. دواړه مختلف استانې دي. د دوي شجره نسب هم د خلیل پښتنو سره سمون نۀ ښکاري.

د میا نعیم شجره نسب :- میا نعیم بن شیخ محمد شعیب بن شیخ محمد سعید بن شیخ شمس الدین بن شیخ عبدالرزاق (تاریخ پیدائش ۱۰۳۷ھ) بن شیخ امام الدین (سکنه پلوسي[2]) میا نعیم

[1] مخزن افغاني ، ص ۴۱۰

[2] شیخ امام الدین بن شیخ کبیر بن شیخ قاسم بن شیخ قدم بن محمد زاهد بن پیرداد بن سلطان بن شیخ کته بن یوسف بن متي.

وروستو کابل او بیا د قندهار په ناوک کلي کښې اباد وۀ ـ پکار ده چې د خلیل قوم څوک قلمکار راپاسي او د خلیل شجره نسب ښکاره کړي ځکه چې د تاریخ د یو ادنیٰ طالب علم په حېث ګمان لرم چې د خلیل قوم دا شجرات د شیخ او سید کورنۍ څخه مخصوص دي ـ د غوریا خېل پښتون کورنۍ سره هیڅ مناسبت نۀ لري ـ

د وسنې غور د ځینې اهم علاقو تشکیل او دغلته اباد قبائل بمطابق ۲۰۰۵ء

| | نوم | قبائل |
|---|---|---|
| 1. | فیروز کوه | هزاره ، تاجک |
| 2. | مرغاب | تاجک |
| 3. | چرسد | پښتانۀ |
| 4. | دولت یار | // |
| 5. | دولت یار | // |
| 6. | لل و سر جنګال | هزاره |
| 7. | پاسبند | تاجک ، هزاره ، پښتانۀ |
| 8. | ساغر | پښتانۀ |
| 9. | شه رک | // |
| 10. | تبواره | // |
| 11. | تُولک | هزاره |

# سليم شاه سوري

د شېر شاه سوري شهادت نه وروستو سليم شاه سوري تخت نشين شو. هغه نهه کاله د سلطنت حکمران وه. د ده نه پس عادل شاه حکمران شو. خو عادل شاه محض په نوم يو کمزورے حکمران وه او ټول اختيارات د هيموبقال په لاس کښې وو. عن تر دې چې د عسکري قيادت اختيار هم ورته حاصل وه.

محمد همايون دغه زمانه د ايران د قزلباش لښکر په امداد کابل او قندهار د مرزا کامران نه قبضه کړل. هغه دريائے سنده نه پورې وتو او د پنجاب باغي ګورنر سکندر شاه سوري نه ئې پنجاب قبضه کړو. او د سرهند په مقام د جنګ په فتح ځلور مياشتې وروستو د دهلي او اګره هم مالک شو.

محمد همايون يو کال د هندوستان[1] بادشاه وه. او ۱۵۵۲ کښې وفات شو. دهلي کښې د شېر شاه سوري قلعه دننه هغه محل موجود دے چې همايون د دغه محل د پوړو نه راپرېوتو او مړ شو.

[1] ايشوري برشاد ليکي: "ہمارے ملک کا قدیم نام ہندوستان نہیں۔ یہ نام غیر ملک والوں نے رکھا ہے۔ ایرانیوں نے سندھ ندی کا نام بدل کر "ہند" رکھا۔ یونانی دریائے سندھ کو "انڈس" کہتے ہیں۔ اس وجہ سے ملک کو انڈیا کہدیا۔ قدیم زمانہ میں اس ملک کا نام جمبودیت تھا۔ بودھ مذہب کی کتابوں اور اکثر ہندو مذہب کے منتروں میں شادی بیاہ کے موقعہ پر اب بھی پڑے جاتے ہیں۔ مگر پرانے زمانہ کے ہندو اس کو "بھارت ورش" کہتے ہیں۔ ص ۱

دي محل سره يو ورکوتي شان جومات دے -د دغه جومات د محراب نه د تور کاڼي يوه نرۍ شان لکيره تاؤ ده چې د وريځ په وخت تړې نمي او د باران په وخت اوبهٔ رواني شي - چې د قدرت د نظام يو عجيبه شان عجوبه ده -

# مالوه او غوريان

د امير تيمور د تاخت و تاراج نه پس د دهلي سلطنت سخت کمزور شو او هر رياست ځان د باج و خراج نه ازاد کړو چې دوي کښې د مالوه حکمران دلاور خان غوري هم شامل وه. هغۀ ۱۴۰۱ء/ ۸۰۳هـ کښې خپل ازاد سلطنت قائم کړو. ۱۴۰۷ء/۸۰۸هـ کښې ورله خپل زوي الپ ارسلان زهر ورکړل او وفات شو. او دغه الپ ارسلان د هوشنګ شاه په خطاب سرفراز شو. ۱۴۳۷ء/ ۸۴۰هـ کښې هوشنګ شاه وفات شو. دده د زامنو تر مېنځ د تخت نشيني جنګ کښې غزني خان بخطاب محمد شاه کامياب او بادشاه شو. خو هغه نالايق ترين او شرابي وه. د غوريا خپل ځيني مشرانو دده په ځاے محمود خان بادشاه کړو. هغه د خلجي په خطاب ۱۴۳۸ء/ ۸۴۱هـ کښې د مالوه بادشاه شو. هغه يو جنګجو سردار وه. ۱۴۲۱ء/ ۸۲۵هـ وه چې د خپل يو عزيز او رشته دار د قتل بدل دپاره ئې په دکن حمله وکړه. او د نظام الملک غوري بدل ئې واخستو. دي ۱۴۶۹ء/ ۸۷۴هـ کښې وفات شو.

د غزن خان محمد شاه د مرګ وروستو دده زوے غياث الدين غوري بادشاه شو. د پلار په ژوند دده يو زوے عبدالقادر ناصر الدين بادشاه شو. چې ۱۵۱۱ء/۹۱۲هـ کښې وفات شو. دده

د زامنو تر مېنځ د تخت نشینۍ جنګ شروع شو. چې علاؤالدین په دغه معرکه کښې فتح یاب شو. د مالوه حکومت د دې جنګونو په سبب سخت کمزور شو او د ګجرات بهادر شاه ۱۵۳۱ء/ ۹۳۷ھ کښې د علاؤالدین محمود شاه دوېم نه د مالوه تخت قبضه کړو. د مالوه او ګجرات تر مېنځ د پښتنو مسلسل جنګونو نه محمد همایون فائده پورته کړه. ۱۵۳۵ء/ ۹۴۱ھ کښې ئې مالوه قبضه کړه. خو د همایون شکست او شېرشاه سوري فتح یابۍ بیا د مالوه نقشه بدل کړه او دغه علاقه د شېرشاه سوري لاس ته منتقل شوه. شېرشاه سوري خپل یو رشته دار شجاعت خان د مالوه ګورنر مقرر کړو. خو هغه ۱۵۵۴ء/ ۹۶۱ھ کښې وفات شو. او د هغهٔ زوے باز بهادر غوري د مالوه حکمران شو. د باز بهادر او رُوپ متي د عشق او شعر و شاعرۍ او د دوي متعلق رومانوي داستانونه ډېر مشهور دي. باز بهادر د مالوه اخېري غوري حکمران وۀ چې ۱۵۶۰ء ۹۶۷ھ کښې د اکبر بادشاه په ایماء د هغهٔ مېرني ورور اعظم خان په مالوه قبضه وکړه. د آدم خان / اعظم خان بدنیت روپ متي مجبوره کړو چې د قلعه نه ودانګي او د خپل خاوند په عشق او وفادارۍ ته ترجیح ورکړي. باز بهادر څو کاله د مالوه په ځنګلونو کښې اواره ګرزېدو نه پس ۱۵۷۰ء/ ۹۷۷ھ کښې مغل دربار ته ځان حواله کړو. اکبر د بازبهادر د قتل اراده وه. خو ځینې درباریانو د هغهٔ د شعر په فن عبور د هغهٔ د رهایۍ سفارش وکړو. هغه تول عمر د اګره په قلعه کښې قید وۀ. د روپ متي په عشق کښې ئې شعرونه وئیل او کله چې وفات شو. نو د روپ متي

څخه جوخت د اوجېن (مالوه) د يو تالاب مېنځ کښې د يو ډېرۍ په سر ښخ شو.

باز بهادر که هر څو د حکمرانۍ په فن کښې ناکام وۀ. ولې د هغه شعرونه اوس هم د يو مخلص عشق ياد تازه کوي.

# عبدالرحمٰن بابا غوریا خېل

عبدالرحمان بابا غوريا خېل کښې مومند په قوم باړه مومند وۀ. مومندو کښې دوېړې ، دوېړو کښې حاجک زے او حاجک زو کښې ابراهيم خېل وۀ .بهادر کلے ئې دېره وه .د پېدائش کال ئې ۱۰۴۲ ه وۀ او ۱۷۱۲ء/۱۱۲۳ ه وروستو وفات شوے دے.

شيخ کته ليکي چې زما تربور رحمت هوتک ۱۷۱۸ء/ ۱۱۳۰ ه کښې پېښور ته تللے وۀ او هلته ئې خبر کښې محمد يونس خان شاعر سره ليدل شوي وو .دغه زمانه محمد يونس خان بن نور محمد خان موسی خېل يو دېرش کلن (۳۱ سال) زلمے وۀ .محمد يونس خان د عبدالرحمان بابا د شاعرۍ معتقد وۀ.

د يونس د مرثيې نه ثابته ده چې د هغۀ د شعر و شاعرۍ استاذ حضرت عبدالرحمان د هغۀ پېښور کښې د موجودګۍ په وخت لکه چې وفات وي.

چې پېدا د اشنايۍ سره هجران شو
ځکه داغ مې په خاطر باندې ارمان شو
له رحمانه فيض ياب عبدالرحمان شو
چې له دې سرايه په نوې سرائے مهمان شو[1]
د پښتو په شعر ئې هسې نامه يوړه
چې خبر ئې په اشعار ايران توران شو

[1] د حافظ محمد شريف مطابق د ابجد په حساب دغه مصرعه ۱۱۱۸ ه بنائي.-وګورئ "مظلوم رحمان"

پُر لذت شعر به ځوک کاندي یونسه
چې په مرګ ځینې خاموش عبدالرحمان شو

د ګل خان جمال مومند په واقعه ۱۷۱۲ء/۱۱۲۳هـ د پښتو ادب درې شاعرانو عبدالرحمان بابا، عبدالقادر ختک او عبدالحمید بابا لیکل کړي دي۔او ددې واقعې کال ۱۷۱۲ء/۱۱۲۳ه ښائي چې د یونس خان د اشعار نه وړاندې د ے۔علم خان افریدي ۱۱۲۲ه وائي:

د ''علم'' سه پائے دیوان ځکه ظاهر شو
چې مومند عبدالرحمان عزیز خان نیشته

عبدالعظیم رانیزي وائي:-

د مومند عبدالرحمان صاحب په مثل
هسې خوږ شعر زما وے دریغه دریغه
بل رحمان سره بند د پېښور دے
په پښتو ئې غزل به دے یو تر بل

عبدالقادر خان ختک وائي:

زهٔ ختک د یار په غم تازه تازه شم
غوریا خېل رحمان که شو ورځینې سترے

کاظم خان شېدا وائي:-

چې مومندو قیل و قال کړو
یعنې دوي سِحر حلال کړو

نجیب سربندے وائي:-

ما نجیب هم په دا طور غزل ووې
که وئیلے دویزي عبدالرحمان وهٔ

رحمان بابا په خپله فرمائي:

هيڅ حاجت د هنر نشته و نصيب ته
غزا وشوه که مهمند که دوبړے شوم

د نوح[4] زوے هم د نېک نيکۀ نمسے وۀ
ګنه زۀ هم د يو نېک نيکۀ نمسے شوم

زۀ عاشق يم سرو کار مې دے له عشقه
نۀ خليل نۀ داؤدزے يم نۀ مومند[1]

تقريباً درې سوه کاله وشول چې عبدالرحمان بابا په صفا سوچه پښتو کښې شاعري کړې ده. د مغل په زمانه سرکاري ژبه فارسي، اردو او بيا انګرېزي شوه. دغسې د سوريانو او سام (د عبدالرحمان بابا نه اتۀ سوه کاله اګاهو)، د شهاب الدين سام وغېره په زمانه دفتري ژبه فارسي ولې د عام عوام ژبه به لازمي طور پښتو منئ. دغسې د سور و سام حکومت نه اګاهو د ضحاک تر وخته پښتو د عام عوام ژبه او دفتري ژبه فارسي، ترکي يا بله ژبه ممکنات لري. غوري خان اصلي پښتانۀ يعني د ضحاک نسل ګني او ضحاک نه تر اوسه غوريا خېل خان د سام و سور نسل شماري. د فېروز کوه (غور) په ښکلي جام مينار د سورۀ مريم ۱۹ کوفي او عربي رسم الخط نه علاوه څۀ داسې حروف ليک دي چې د نورو ژبو طرزِ تحرير لري. ممکن ده چې ددغه ليک اصليت پښتو وي.

[1] د غوريا خېل درې ذېلي شاخونه.

# عبدالحمید مومند غوریا خېل

عبدالحمید بابا په قام غوریا خېل ، غوریا خېلو کښې مومند . مومندو کښې کوکوزے . کوکوزو کښې ماماخېل او ماماخېلو کښې خدرېزے او خدرېزو کښې ماشوګګر دے.

چې د عشق تاوونے رنج د حمید مل شو
زر به ښخ په هدیره شي د ماشو

دلته یو زیارت د ګګهر باباجي په نوم شهرت لري .او د غوري قبائل په دې کلي کښې اولنے اباد کار دے .او دا هغه مشر وۀ چې د باجوړ په سیمه د ملک هیبو دلازاک او د خلیل یوسف زي مشترک ډلې تر مېنځ ملک ګګهر او ملک سرخابي د جرګې مشران وو .خو دا دواړه مشران او جرګه مار د دواړو ډلو تر مېنځ صلح کښې ناکام راغلل .جنګ وشو او دلازاک مشر ملک هیبو قتل شو.

تاسو به دا هم اورېدلي کتلي وي چې دغلته یو کلے د ککه وله په نوم اباد دے .ددې کلي اصلي نوم ککهر،ګکهر وله دے. سوري زي بالا څخه جوخت امریکه بېس Base سکیم پورې کوهاټ روډ تا 6937th Communication Flight پورې دا ټوله زمکه د ککر ملک په نوم شهرت لري .د ماشوخېل او ماشو تر مېنځ د فرق لرې

کولو په غرض ماشو خخه د ګګهربابا جي نوم منسلک شوے دے
او دا کلے د ماشو ګګهر په نوم مشهور دے۔
د عبدالحمید په نوم یو بل تن د ماشوخېل د سیمې شاعر
دے چې د محمدي صاحبزاده په دیوان کښې ئې څو غزلې درج دي۔
د حمید بابا څلور لیکلي کتابونه زمونږ په لاس کښې موجود دي۔

1. دُر و مرجان (شعري دیوان)
2. نیرنګ عشق (د مینې محبت داستان، ترجمه د فارسي نه)
3. شاه و ګدا (د مینې محبت داستان، ترجمه د فارسي نه)
4. شرعة الاسلام د اسلامي احکاماتو ترجمه کتاب (غالباً عربۍ نه)

د عبدالحمید بابا په دې کلي کښې اولاد وۀ۔ او ددغه راز انکشاف د نیرنګ عشق په اختتام کښې "پند د فرزند سعادتمند چې خاص و عام شي ترې بهره مند" په موضوع دے۔ ددۀ اولاد څوک وو۔ پته نشته۔ د خپل ذاتي مفاداتو په غرض ډېر دعویداران دي خو اصلي کورنۍ متعلق ئې هيڅ معلومات نشته۔

ساته کل د کور سرې تر قبض لاندې
د خپل حکم هیبت پروت لره ورباندې

د حمید بابا د کلام لوستو نه معلومېږي چې هغۀ پخپلو سترګو د مغل شهنشاهیت د اووۀ بادشاهانو د سلطنت چشم دید ګواه دے۔
(۱) اورنګ زیب (۲) شاه عالم بهادر شاه اول (۳) جهان دار شاه (۴) فرخ سیر (۵) رفیع الدرجات (۶) رفیع الدوله (۷) ابو الفتح ناصرالدین محمد شاه (وفات ۱۷۴۸ء/ ۱۱۶۱هـ)

عبدالحمید بابا فرمائي :-

خان به مړ د عشق په جهل کړم ناصحه
وابه نهٔ وړم زهٔ حمید هسې پښتون یم

د شاه و ګدا دا شعر وګورئ :

یو په زړهٔ کښې مې لړم ددې فکرت وهٔ
سن یو زر سل اووهٔ دېرش ۱۰۳۷هـ کال د هجرت وهٔ

چې د ښکلیو د درګاه ګدائي موم
هائے توبه د محمدشاه له سلطنته

له هغه چې پوهېدلے په ښهٔ بد یم
رسېدلے د پنجاه و پنج تر حد یم

د ۱۱۳۰هـ نه چې پنځهٔ پنځوس منها شي نو د صدیق الله خان رښتین د اندازې مطابق ۱۰۷۵هـ پاتې شي او ددغه دانشور همدغه کال د پېدائش کال حسابوي.

څهٔ به شور نهٔ وي د هند په مېخانه کښې
چې اورنګ سره د حکم جام نسکور شو

د جمال د قتل واقعه ۱۱۲۳هـ کښې واقع کېږي چې درې اهم شاعرانو د هغهٔ په شهادت اوږدهٔ نظمونه لیکلي دي . یعني عبدالرحمان بابا ، عبدالحمید بابا او عبدالقادر خان خټک.

د شرعة الاسلام د اختتام تاریخ هم معنٰی خېز دے :

وکړه مـا خـدای ته دا تېښته
په زر سـل اتـه ځلو ښته

د شـوال پـه شپږ ویشـتم
پـه دا داد خـدای وکـتم

چې پیری مې ږیره سپینه کړه ملا غبرګه
بویه قد د سروِ قد عصا تر تخرګه

فارسي بانو د حیرت ګوتې په خولهٔ کړې
چې حمید سخن سازي کړه په پښتو کښې

د پښتو ادب دا عظیم موشګاف او نازک خیاله شاعر اټکلن
۱۱۵۰ هـ کښې په حق رسېدلے ښکاري۔

# صنوبر حسین مومند غوریاخیل المعروف کاکاجي
## ۱۸۹۷ء تا ۱۹۶۳

د انګریز د استعمار مخالف دا نومیال جنګیالے سیاسي سماجي او ادبي شخصیت ۱۸۹۷ء کښې ګل فراز خان کره پیدا شو.

چې ئې سر چرې خزان وته تیټ نۀ شو
ځکه نوم پرې ادې صنوبر کېښود

یو سروې صنوبر ئې هم په غاړه زرغون نۀ شو
راوتې له بارې خو نورې هم ککې ولې دي

د سیاسي مرام حصول او د ادبي دنیا دا لوړ او اعلیٰ صلاحیتونو مالک د غوریاخېل د مومند په علاقه ککه وله (ککر، ګهګر) د موسیٰ بن خاتون بي بي اولاد نه وۀ. بي بي خاتون د مومند دوېمه ښځه یاد ېږي. د موسیٰ نور دوه ورونه مابیار او کوکو وو. د موسیٰ اتۀ زامن وو:
(۱) احمد (۲) بازید (۳) حیدر (۴) علي (۵) عثمان (۶) خواجه (۷) عیسیٰ (۸) بالي.

ګګه وله کښې د موسیٰ د زوے علي دوه زامن اسماعیل او تانا اباد دي او د ککر یا ګګه وله په یو اړخ دغه علي زي او بله غاړه ئې د عثمان خلور زامنو کښې د دوؤ زامنو سدو او بهرین اولاد اوتمان زئ اباد دي ـ علي زي او اوتمان زي د لوے نالهٔ آب او سړک یو او بله غاړه د سالم جائیداد مالکان دي ـ چې بیا د تقسیم په لحاظ علي زي ۴۸ برخه او اوتمان زي ۴۸ برخه ـ یعني کُل جائیداد ۹۲ برخه مالکان دي ـ دغسې احمد او بازید د ۴۸، ۴۸ برخو خاوندان او کلي دي ـ

د موسیٰ قبر د میچنی په ادیره کښې دے ـ ددهٔ په خالصه کښې د جائیداد ۹۲ برخه وه ـ خو د مغلو او سکهـ سرکار د ظلم په سبب دوي د بر مومند غرونو ته منتقل شول او په جائیداد وروستو د خالصه دربار قبضه شوه ـ میچنی، شبقدر ورسک خواؤ شا آباد مومند د سکهـ سرکار د بربریت نه راغلي هغه مجاهدین دي چې د دوي جائیداد ضبط شو او خالصه دربار ته وقف شو او دغه مومند د خپل اصلي او موروثي حق نه محروم شول ـ

صنوبر حسین چې د پینځو کالو شو نو پلار (وفات ۱۹۱۷ء) په مدرسه کښې داخل کړو چې هغه زمانه مدرسه تر خلورم جوماتِ وه ـ ۱۹۰۲ء کښې د اسلامیه هائي سکول په پینځم جومات کښې داخل شو ـ ۹ ـ ۱۹۰۸ء کښې د میټرک نه پس د نوکرۍ په تلاش شو او ډیر زر په برتهکال او وروستو بازید خیل کښې د یو مدرس په حېث نوکر شو ـ دا زمانه وه چې د انګریز خلاف سیاسي جدوجهد روان وؤ ـ او ډیر سرکاري ملازمانو د

انګرېز نوکرۍ ته خېر باد ووې ـ چې په دوي کښې اے ایس آئي سید عاشق شاه باچا هم شامل وۀ ـ چې وروستو د کانګریس پارټۍ یو اهم رکن وۀ ـ

زما والد محترم دوست محمد خان (مرحوم) به فرمائیل چې د ځلورم جومات نه پس مشن هائي سکول کښې داخل شوم ـ د فټ بال د یو اعلیٰ لوبغاړي په حېث دغه سکول کښې زما قدر ډېر زیات شو ـ خو بل طرف زمونږ په سرکاري سکول کښې د داخلې په سبب په علاقه کښې د ملایانو الغاؤ تلغاؤ وۀ ـ

سبق د مدرسې وائي
دپاره د پیسې وائي
جنت کښې به ئې ځاے نۀ وي
دوزخ کښې به غوتې وئ (وهي)

د زبردست مدافعت په سبب ما سکول ته خېرباد ووې او اخېر کار سبق وئیل مې پرېښودل ـ

د سرکاري نوکرۍ په پرېښودو صنوبر حسېن د بهادر کلي د خان حبیب خان په حجره کښې ۱۹۲۱ء راسې قائم ازاد سکول کښې اعزازي نوکر شو ـ او د هغۀ د درس و تدریس نه ډېر هلکان مستفید شول ـ بهادر کلي کښې د انجمن زمینداران انجمن قائم شو چې صنوبر حسېن ددې تنظیم یو اهم کارکن او سیکرټري جنرل وۀ ـ ددې انجمن د قیام کال ۱۹۲۲ء ښودلے شي ـ

د باړې د اوبو تنازعه د مرک ډپټي کمشنر ۱۸۸۲ء د وخت راسې را روانه وه ـ د باړه قلعه خوا کښې د باړه دریاب په یو او بله

غاړه مخامخ د مومند قوم دو بندي وه -چې ګس اړخ ماشوخېل طرف نهر وؤ -اوښي طرف د مومند خپله نکه يا د اوبو نالی باړې ته راغورزولې وه -البته دې سره جوختبه د خليل قوم وله وه -چې د سربند د بنه تل مخامخ ترې مختلف نکې د خليل مختلف زمکو ته جدا وې -مونږ چې هلکان وو اکثر به مو دغلته لامبل ، ځکه چې سربند کښې زما سکه د ترور زامن وو -انګرېزان چې راغلل -نو د چاؤنی دپاره ئې د خليل مومند د نکو نه پورته يوه بله وله تيارکړه -خليل مومند اول د انګرېزانو خلاف شول -بيا ئې خپلو کښې جنګونه ونخلول -انګرېز سرکار د خليل مومند جنګ د دواړه ځايه اربابان مومند او تهکال ذمه وار ګني -په دې متواتر جنګ کښې په سلګونو خليل مومند قتل شول -تفصيل دپاره ددغه وخت ګزيټيرز وګورئ -١٩٢٨ء کښې د ډپټي کمشنر متکاف په زمانه د انجمن زمينداران د باړې د اوبو په سر اجلاسونه ګرم وو -او ميا سيف الرحمان او ميا فضل الرحمان ، حضرت امين ، امير بادشاه ، حاجي اکرم خان بهادر کلے ، خان عبدالله خان رئيس شيخان ، معروف شاه ګګه وله ، محمد يوسف خان ، سيد عاشق شاه بهادر کلے او نور ډېر زميندارن ددغه انجمن ممبران وو -البته صنوبر حسين کاکا ددغه جرګې سيکرټري وؤ او د انګرېز سرکار په سترګو کښې اصلي ازغے وؤ -( نور واقعات ما څۀ په يو رجسټر کښې د ډپټي کمشنر ډائري بسته جات موجود دي -)

١٩٢٧ء کښې صنوبر حسين د عبدالرحمان ريا او عبدالعزيز خوش باش په ملګرتيا د "جمعيت نوجوانان سرحد" په

سیاسي تنظیم کښې شامل شو چې وروستو دغه انجمن د ''نوجوان بهارت سبها'' په نوم مشهور شو چې د ګاندهي جي د عدم تشدد تحریک خلاف د سوبهاش چندربوس د تشدد تحریک هم خیال شو .او ددغه تحریک رکن او صدر شو.

۱۹۳۰ء د قیصه خانۍ په مقام خوني جنګ په وجه ګرفتار شو[1]. خو ۱۹۳۱ء د ګاندهي جي ارون پېکټ په ذریعه د جېل قېد نه ازاد شو.

۱۹۳۱ء کښې هغهٔ د سېلاب په نوم اووهٔ ورځنۍ رساله جاري کړه. د انګرېز سرکار خلاف شعله بیان تقریرونه او تحریرونه د هغهٔ د مشکلات سبب شول. صاحبزاده محمداسلم د بازیدخېلو، سید امیر باچاد موسیٰ زئ ، مرتضیٰ خان باچا وغېره د ګرفتارۍ حکم نه ځان د بچ ساتلو په غرض روپوش شول. د ګنداؤ د کسي میا صاحب لال صدیق سره ئې پناه واخسته .بیا حاجي صاحب ترنګزي سره لکړو مومند کښې وو .دغلته ئې شعله نوم رساله اجراء کړه. هغه د ترنګزو حاجي صاحب سره د افغانستان د تګ په وخت ملګرے وهٔ .حاجي صاحب ترنګزئ چې وفات شو نو د هغهٔ زوے باچا ګل سره ملګرے وهٔ .خو هغهٔ سره ئې ډېر زر اختلاف پېدا شو .د غازي اباد نه دملک محمد عمر خان سره په سوال قلعه اوتمان خېل کښې ډېره شو .۱۹۳۳ء کښې د صاحبزاده محمد

[1] په ۵ جون ۱۹۳۰ء افریدیو پېښور محاصره کړو. دې جنګ کښې افریدیو نه علاوه د باړه مومند ډېر استوګن هم قتل شول. چې دغه کښې د رِنګ روډ په غاړه د یو غازي قبر وو چې اوس اوس چرته بل ځاے بنخ شو.

اسلم په کور سوال قلعه کښې د شپې په تيارهٔ کښې چا بم ورګزار
کړو. صاحبزاده اسلم سخت زخمي شو . د جلال آباد يو هسپتال ته
منتقل شو. خو ۱۹۳۷ء کښې ئې د شهادت جام نوش کړو.

صنوبر حسين سره د ملک محمد عمر او اوتمان خېل رويه
ډېره ښهٔ وه . سبهاش چې پټ په پټه ۱۹۴۱ء کښې د پېښور نه
افغانستان ته ورسېدو . نو کاکاجي څخه ئې ملاقات وکړو . هغهٔ
سبهاش چندربوس هډا کښې حاجي محمد امين سلېمان خېل
بلې بېر ته ورسوهٔ . چې بهګت رام[1] او عباد خان هم ورسره ملګري
وو.

د ازادۍ ۱۹۴۷ء نه پس کاکاجي خپل وطن پېښور ته راغلو.
د صاحبزاده محمد اسلم شهيد په نوم ئې مياشتنۍ رساله ۱۹۴۹ء
کښې اجراء کړه . د اسلم شپاړس رسالې شائع شوې چې د وزيراعلیٰ
قيوم کشميري په حکم ۱۹۵۲ء کښې ئې طباعت بند شو.

۱۹۲۱ء کښې د اولسي ادبي جرګه قيام وشو. ددې جرګې
په وجه د تنقيدي مرکو اجلاسونه د دوست محمد کامل په دفتر
کښې باقاعده کېدل.

زهٔ چې ۱۹۴۸ء کښې د خپل کلي په مدرسه کښې څلورم
جومات نه پاس شوم . نو په مشن سکول پېښور کښې په پينځم
جومات کښې داخل شوم . بشيرصديقي د خاکسار تحريک مشر
وهٔ . د هغهٔ دوکان د قصه خانۍ ښکته سر غرباً يو وړوکے سړک

[1] د بهګت رام کتاب ''سب سے بڑا فرار'' د هندۍ نه اردو ترجمه ما څخه موجود دے.

ګندګۍ نالۍ ته وۀ چې اوس هم موجود دے ـ مخ په پورته ګرجه ګهر او مشن سکول او مخ په ښکته دوباره قصه خانۍ ته راوتي وو ـ د کوهاټي په لاړ ددغه ورکوټي سړک جنوباً د بشیر صدیقي دوکان وۀ پلار زما پېژندګلو هغۀ سره کړې وه ـ خو څنګه به چې نیمه چوټي شوه نو د هغۀ ملازم به بهر ولاړ وۀ ـ او زۀ به ئې د هغوي دوکان ته ورسولم ـ هغۀ څخه به مې ډوډۍ وخوړه او واپس به ئې مشن سکول ته راورسولم ـ دغلته د هغۀ د ښۀ ډوډۍ خوراک باوجود زۀ خوشحال نۀ ووم ـ ځکه چې دا زما په لوبو (کلاس فېلو) سره زبردست قدغن وۀ ـ بهرحال بشیر صدیقي سره مې د ملاقات دغه سلسله عارضي طور ختم شوه او دغه مشکلات نه فارغ شوم ـ

ماته اوس هم یاد دي چې زمونږ مشران د لنډۍ د اربابانو په رشته د مسلم لیګ زبردست مرستیال وو ـ خو د خاکسار تحریک مشر بشیر صدیقي به چې کله زمونږ کلي ته خپل ډېر ملګرو سره راغلو ـ زمونږ د حجرې نه به ئې د مسلم لیګ جنډا کوزه کړه ـ د خاکسار زیړه جنډا به ئې ودروله ـ ډزې او سلامي به وشوه ـ چائے به ئې وڅښلې او نور مقامات ته به روان شول ـ

دویمه مسئله چې د پلار مې د عبدالخالق خلیق صیب چې دوکان ئې د قیصه خانۍ افغان کونسل کښې وۀ او هغۀ ته مخامخ د قیصه خانۍ د سړک بله غاړه د هغۀ د ورور عبدالمنان استاد دوکان وۀ ـ چې کله به قیصه خانۍ ته راغلم ـ نو هغوي چرته بې ډوډۍ او چائے څښلو پرېښودم ـ دا په یو بل عذاب ګرفتار وم ـ خو ددغه مشکل ګوزران حل مې د قیصه خانۍ په شا د ګنده نالۍ په

سړک خيبر بازار ته خپل کليوال حبيب الله سائيکل والا دوکان ته رارسوؤ ـ زۀ به چې کله د قيصه خانۍ په سړک راتلم ـ په سپينو خامته جامو کښې ملبوس ، سپين پټکے په سر او په اوږه سپين څادر قيصه خانۍ کښې يو سړے تېرېدو ـ د هر چا کوشش وۀ چې جوړ تکړه ورسره وکړي ـ څوک به دوکانونو کښې ودرېدل او سلام به ئې ورته کوؤ ـ زۀ حېران وم چې دغه خوار غريب به څوک وي چې خلق ئې دومره احترام کوي ـ ۱۹۵۰ء وۀ چې د پاکستان د قيام نه وروستو اولنے اليکشن راغلو ـ زۀ شپږم جومات کښې وم ـ د کم عمرۍ باوجود زما ووټ وۀ ـ د پلار ترونو په شان زۀ هم وراثتي مسلم ليګي وم ـ د لنډي يرغجو اربابان زمونږ نزدې خپلوان وو ـ چې دغه خپلوي تر اوسه قائم ده ـ اليکشن زور و شور سره جاري وۀ د مسلم ليګ نمائنده ارباب نور محمد خان او د کانګريس نمائنده کاکاجي صنوبر حسين وو ـ د هزار خانۍ او بهادر کلي د ووټونو اچولو مرکز زمونږ پرائمري سکول وۀ چې د اروابښاد سيد قاسم شاه باچا صيب په نجي مکان کښې قائم وۀ ـ ړومبنۍ ورځ د هزارخانۍ او نور ووټرانو دپاره مقرر وه ـ د هزار خانۍ خلقو ډوډۍ د ارباب صيب خوړه او ووټ به ئې صنوبر حسين ته ورکوؤ ـ دغه ورځ صنوبر حسين ډېر زيات ووټونه واخستل ـ او دا امر يقيني وۀ چې صنوبر حسين به دا اليکشن ګټي ـ ما خپل ترۀ نه تپوس وکړو چې د نن اليکشن نه صفا برېښي چې د کانګريس ګټه يقيني ده ـ خو مشر کاکا ووې چې سبا به دا اليکشن په لوے اکثريت ارباب نور محمد ګټي ـ ماته دا پته هم ولګېده چې اګاهو نه ډکې بکسې راغلي دي

واقعي هم دغسې وشوه .او دا سلسله اوس هم روانه ده .د قيوم خان نه راواخله د پوليس ، فوج وغېره اګاهو نه بکسونه ډک کړي وي او هغه څوک ګټي چې څوک حکومت غواړي .د شطرنج په دې لوبه کښې مونږ مهرې يُو .چې هسې يو يا بل اړخ اوړو را اوړو.

د جمهوريت نوم يو فرېب او دوکه ده .ما دغه چالونه د کالج په سطح د طلباء يونين سازۍ کښې هم ډېر ليدلي دي .دغه ناوړه لوبه کښې زهٔ څو واره لرې ځايونو ته بدل شوے يم .او بحېثيت د چيف پراکټر سرکاري کالج پېښور کښې مې سزاګانې خوړلې دي چې د هېرېدو نهٔ دي.

بيان اوږد شو .وئيل مې غوښتل چې د اليکشن په اولنۍ ورځ د پلوسې جومات ښکته سر نور هلکانو سره ولاړ وم چې دې کښې په يو پښه ګوډ هغه سړے څلور پينځهٔ کسانو سره تقريباً يوولس بجې راښکاره شو .کوم چې ما ډېر وارې په قيصه خانۍ کښې ليدلے وهٔ .هغه مونږ طرف ته راتاؤ شو .ما او نورو سره ئې جوړ تازه وکړل .او بيا د اليکشن ځاے ته وړاندې لاړو .هم دغلته راته چا ووې چې دا صنوبر حسېن دے .ووټ ما سحر وختي اچولے وهٔ .ارباب نور محمد خان کهٔ هر څو يو ښهٔ سړے او زما خپلوان وهٔ خو زهٔ ددغه ګوډ صنوبر د فقيرانه لباس او عاجزانه شکل شبهات نه دومره متاثره شوم چې د هغه ووټ د غلط استعمال اثرات تر اوسه زما په دماغ موجود دي.

زهٔ چې نهم لسم ته راورسېدم .نو د پلار د منشا خلاف ما په خپل کور سره جنډا ولګوله .پلار مې غصه شو او جنډا ئې

راکوزه کړه ۔زمونږ اربابانو سره خپلوي دي او تۀ زمونږ رشته
ختموي ۔خو اخېر د کالج د طالبعلمی په زمانه زۀ پخپل مرام کښې
کامیاب شوم ۔زۀ اوسه پورې نېشلیانو سره همدردي لرم ۔د
ګورنمنټ کالج پېښور زاړۀ طالبعلمان مې اوس هم په دغه شکل
پېژني ۔غلام احمد بلور ، ارباب سیف الرحمان ، ارباب سکندر
خان، لالا ایوب او نور زاړه سیاستدانانو څخه مې تعلقات وو ۔
نېشلیان چې کله برسراقتدار راغلل ۔زۀ به یو ډېر ته شوم ۔چې
هسې نه دوي وګڼي چې زۀ څۀ مطلب اخستو دپاره ورغلے وم ۔دنیا
بدله شوه ۔سیاست نشته ۔محض خودغرضي ده ۔د مسلم لیګ په
حمایت چې زمونږ زخمي تربوران کلي ته د جېل نه راوړے شول او
ځوورځې په خپل کورونو کښې بدحاله پراتۀ وو ۔نۀ ئې چا تپوس
وکړو۔د عاشق شاه باچا زوے فاروق شاه چې پلار ئې دوه دېرش
کاله قېد خوړلے وۀ اوس ئې څوک هم نۀ پېژني ۔افسوس دا دے چې
خانداني مخلص پښتانۀ د سیاست مرکز نۀ دي بلکې دو نمبري
کسان د سیاست مشران دي ۔د ضحاک او سام و سور نسل یا د
محمد غوري او شېرشاه سوري اخلاف ایمل خان مومند ، صنوبر
حسېن شان جنګجو قیادت به د کومه ځایه اوس راپېدا شي۔

ماته په شهیدانو کښې د باچا خان جلسې د ۱۹۴۷ء د
پاکستان قیام د جوګن شاه د هندوانو د کورونو غرغنډې ، بکس
کښې بند د یو سکه وژل ، په نذر باغ ( فرنټیر زنانه کالج ) کښې
د ټول سرحد بسونه اپرېل ۱۹۴۸ء کښې د محمد علي جناح جلسه
اوس هم محض یاد داشتونه دي۔

صنوبر حسېن يو داسې شېر ببر وۀ چې په اودو ترې دغه جعلي دو نمبري سياستدان وېرېدل ـ د دمې مريض وۀ چې يو ځل به په ټوخي شو ـ نو د هر چا به پرې زړۀ سوزېدو ـ

۱۹۵۳ء کښې دا اوچ هډوکي هم زندان نه خلاص نشول ـ ډېرو کښې په زندان شو ـ ۱۹۵۸ء کښې د ايوب خان د مارشل لاء په سبب لاهور شاهي قلعه کښې بنديوان شو ـ چې ۱۹۵۹ء کښې ازاد شو ـ

صنوبر حسېن[1] د ماسټر خان ګل[2] د بانګ حرم مدير هم پاتې شوے وۀ ـ د افضل خان بنګش[3] څخه ئې خاص دوستي وه ـ د ارکائيو په ريکارډ د دوي دواړو د حکومت وخت خلاف سرګرمۍ په يو فائل موجود دي ـ دغه نه علاوه د هغۀ جدوجهد د ډپټي کمشنر هر خوفيا بسته کښې ذکر موجود دے ـ

د سياسي جدوجهد او ادبي دنيا ستر محقق او نقاد د ساه لنډي په مرض جنوري ۱۹۶۳ء کښې په حق ورسېدو ـ

د صنوبر حسېن دا ورکوټے شان تعارف د هغوي په دې غزل ختموم :

---

[1] د صنوبر حسېن د جدوجهد ډېرې قيصې هغه زمانه ماته فريد خان ککه وله کړې وې ـ خو اوس ماته ياد نۀ دي ـ

[2] ماسټر خان ګل سره مې هم تعلقات وو ـ د هغۀ يو برخوردار لکه چې زمونږ شاګرد هم وۀ ـ

[3] زما افضل خان بنګش سره د کوهاټ روډ د رهائش په سبب تعلقات وو ـ د هغۀ د يو نفسياتي ورورغالباً عبدالقدوس يا خپلوان زما لوڼو سره د سيکم پي اے ايف سکول کښې کلاس فېلو وې ـ

د ملا په نصيحت به څوک غوږ کښېږدي
تر ممبره چې چغار ستا د پښو ځي
دا مارغان وربانـدې چتر چتر کېږي
د باګرام نه سهل بهر ته د سکنو ځي
جونه ستا ځواني مرګي باندې ژړېږي
ځکه شور ئې تر خېبره د بنګړو ځي
چې کوم ځاے کښې د مزرو نوکې رژېږي
عاشقان هلته په څوکو د بڼو ځي
خدايه ! دا بازار تالاکړې په کافرو
د مفلس حسن په يو موتي چڼو ځي
د توپک د دارو مست بوئي به ترې تللو
اوس پښتون نه بوئي د عطرو د منو ځي
درنګ ساعت له ئې ګوزار په مېدان بويه
هر مارغۀ چې د پرديو په بڼو ځي

زۀ چې ۱۹۲۱ء کښې د پښتو څانګه کښې په اول ځل داخل شوم او بيا د عبدالطيف خان په حجره کښې زمونږ هفته وار اجتماع کېده. زۀ او فريد صحرائي[1] د رائټرز کلب سرګرم اعزازي ممبران وو. او ددغه کلب د نشستونو د روئيداد ليکلو ذمه داري زما په سر وه[2]. نو کله نا کله به مې د صنوبر حسېن نوم اورېدو. البته بابو عبدالباقي ، ارباب محمد خان کاکا ، سردار خان فنا ،

---

[1] فريد صحرائي زمونږ کلي کښې پي ټي سي استاد وۀ.
[2] دغه روئيداد باقاعده بانګ حرم کښې د يوسف خان اورک زي په ذريعه چاپ کېدل

مرتضٰی شاه باچا او بیا په تېره تېره د سالار فرید خان نه د دوي متعلق ډېر معلومات حاصلېدل ـ سالار فرید خان ډېر جهاندیده انسان وۀ ـ لوړ دنګ نرے نروچکے وۀ او د خپلو مشرانو سره د تعلقات په سبب ئې ما ځخه لکه د خپلو بچو مینه لرله ـ د ځکه وله مرتضٰی شاه او د موسٰی زئ امیر بادشاه ځخه هم زمونږ د مشرانو تعلقات وو ـ سالار فرید خان سره ډېر معلومات وو ـ د سیاسي امورو نه ښۀ واقف وۀ ـ خو په کوم موضوع چې به هغۀ ډېر بحث کوۀ ـ زما د دلچسپۍ نه بهر وو ـ دا ټول کسان د صنوبر حسېن کاکاجي زبردست معتقدین وو ـ او زۀ به چې دوي سره چا ولیدم نو هم دا نصیحت به ئې راته کوۀ چې دوي سره ډېرې خبرې مۀ کوه ـ دا مرتدان ، کمیونسټ او بې دینه خلق دي ـ شېخ محمود او شېخ اشرف (شېخان) سره هم زمونږ جوخت خانداني تعلقات وو ـ د اکرم خان بابا په وجه زمونږ کلے د سیاسي اجتماعاتو مرکز وۀ ـ د عبدالرحمان بابا په وساطت دا کلے یو ادبي مرکز وۀ ـ

# كتابيات

## پښتو


- د پښتنو تاريخ جلد اول — قاضي عطاء الله
- د امير كروړ ياد
- پټه خزانه — محمد هوتک
- ديوان عبدالرحمان بابا
- ديوان عبدالحميد بابا
- ديوان محمد يونس
- ګوري اسپې — خواجه محمد سائل
- ديوان ميا نعيم متي زئ
- تاريخ شيرشاهي — محمدعباس سرواني (پښتو ترجمه)
- تاريخ هندوستان — ميا عبدالودود ، والي سوات
- پښتون اوتمانزئ


## اردو


- چنگیز سے انگریز تک — اثر چغتائی
- الافغان — سید جمال الدین افغانی
- جامع التواریخ

- مخزن افغانی — نعمت اللہ ہروی
- طبقات ناصری — قاضی منہاج سراج
- حدود العالم مینورسکیؒ
- حیات افغانی
- تاریخ افغانستان — محمد اسمٰعیل ریحان
- تاریخ فرشتہ
- قدیم پشتو، پشتون — سلطان محمد صابر
- تاریخ حافظ رحمت خان
- تاریخ ہندوستان ایشوری پرشاد


## فارسی


- تذکرۃ الابرار والاشرار — اخون درویزہ
- شاہنامۂ فردوسی


## ENGLISH


- Ancient India by V.D Mahajan
- A short history of Afghanistan by Syed Fayyaz Mahmud
- History of Afghanistan by Alfinston

# د ليکوال چاپ اثار

- دعبدالحميد بابا ژوند او شاعري ۱۹۸۵ء
- ګوري اسپي ۱۹۹۱ء
- رومانويت او عبدالحميد بابا ستمبر ۱۹۹۴ء
- تاريخ پاړه سو منډ (جلد دوم) ۱۹۹۸ء
- هندکي اور هندکو جون ۱۹۹۸ء
- عبدالرحمن بابا او د مجنون د محبت داستان ۲۰۰۰ء
- پنجاب او پښتانه جنوري ۲۰۰۰ء
- تاريخ پاړه سو منډ (جلد سوم) ۲۰۰۱ء
- خوشحاليات او حقائق جنوري ۲۰۰۲ء
- يهوديت او پښتانه اګست ۲۰۱۲ء
- ضحاک (د غوريا خېل تواريخ ''دا کتاب'' ۲۰۲۰ء

اعراف پبلشر
aarafprinters@gmail.com
0312-5945568
0300-5945568
قصه خوانی پېښور